


نهم کال دویمه ګڼه، پرلپسې ۵۲، شوال ۱۴۳۶هق، جولای ۲۰۱۵م

## د اسلامي امارت مؤسس عالیقدر امیر المؤمنین
## ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله ته ځانګړې ګڼه

- دفقید الملة والدین امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد(رحمه الله) دغم په یاد او ویر ځوره په وینو څو ټکي...!
- دتعزیت او بیعت پیغامونه
- د اسلامي امارت د نوي امیر له طرفه د ټولو بیعت کوونکوله بیعت کولو څخه دقبولیت او مننې پیغام
- هغه شخصیت چې ژوند او وفات یې دواړه د مسلمانانو لپاره د وحدت پیغام بریښود!
- د اسلامي امارت د نوي امیر د لومړۍ غږیزې وینا ارزښتمن پیغامونه
- امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله مجدد فرد!
- دعالیقدر امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله ژوند لیک






**علمي، کلتوري او اسلامي مجله**

نهم کال دویمه گڼه، پرلپسې۵۲ ، شوال۱۴۳۶هق، جولای ۲۰۱۵م

**دامتیاز خاوند :**
دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنگي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :**
ابو ظهیر

**کتنپلاوی :**
شاهد ''حقاني '' لطیف عزم
حسن '' علوي'' بلال ''وحید''
نعیم '' صافی '' عابد مجاهد
قاري حبیب

**بیه :**
یوه گڼه ۲۰ افغانۍ او ۳۰
کلدارې په پاکستان کې

**تخنیکي مسؤل :**
تخنیکي څانګه

**یادونه**

شهامت له سرمقالې پرته دنورو لیکنو مسؤلیت
په غاړه نه اخلي.

## لړلیک



ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان    بریښنالیک : Sham.shahamat@yahoo.com

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحیم

# دفقيد الملة والدين[امير المؤمنين

## ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ د غم په ياد او ویر دزړه په وينو څو ټکي...!

د ۱۴۳۶ هق کال د شوال په ۱۴ [ زمري ۷- جون ۳۰]مه نېټه د چهارشنبې په ورځ د افغانستان د اسلامي امارت رهبرۍ شورى او د مرحوم امير المؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ کورنۍ په یوه ګډه اعلاميه کې اعلان وکړ چې: دافغانستان داسلامي امارت مؤسس او زعيم امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد د ورپيښې ناروغۍ له امله خپل روح ملک الارواح ته وسپاره او له فاني ژوند ه يې د تلپاتي ژوند په لور سفر وکړ. انا الله وانا اليه راجعون.

په دې غمګين خبر دهېواد دننه او بيرون دلکونو مسلمانانو ،علماوو، طالبانو او مجاهدينو زړونو ټکان وخوړ او په سترګو کې يې دغم اوښکې راغلې، يقيناً دامير المؤمنين رَحِمَهُ ٱللَّهُ مړينه داسلامي امارت او مسلمانانو لپاره دروان تاريخ ترټولو لويه صدمه اوغمېزه ده،ځکه نوموړي رَحِمَهُ ٱللَّهُ پخپلو مخلصانه کوښښونو ، سترو قربانيو او د لا مثال ايثار په برکت چې داسلامي نظام او اسلامي فکر کوم ګلبڼ سمسو ر اوپاللى نورهغه يې په وفات سره له برکتونو او مدبرانه لا رښوونو څخه محروم پاته شو ... فالى الله المشتکى!

له شک پرته داسلام او مسلمانانو ددې ستر خادم اوزعيم مړينه يو لوى ملي ماتم او لويه غمېزه ده!! ارواښاد دحق پالو نکو مشرانو اوپه شريعت دعمل لرونکو رهبرانو داوصافو اوخصايلو ترټولو غوره نمونه وا! چې د حقانيت ،للهيت اخلاص اوخداى پالنې په لار کې ګاللي زحمتونه او ستړياوې به يې دمسلمانانو او افغانانو په تاريخ کې تل يادګار پاته وي، په خاصه توګه دامريکايانو او صلبيانو دوحشيانه يرغل وروسته پرلپسې ديارلس کاله ستونزې ، مصايب مشکلات اوناخوالې په ځوانمردانه روحيه زغمل د اسلامي هېوادو دچارواکو په معاصر تاريخ کې بيلګه نلري ، داهرڅه ددې لپاره چې داسلام او مسلمانانو په اوسني مظلومانه اومحکومانه حالت يې خداى پال زړه صبرنه کاو، په دې وجه داسلام او افغانانو ددښمن د غوښتنو اوحکم نه په برملا انکار کولو سره يې داسلامي امت دسلفوعلماوو تاريخ ته ژوند وباښه او هم يې له ځان وروسته دخپل هېواد علماوو ،طالبانو او مجاهدينو لپاره د اسوه حسنه ميراث پريښود، که نن ورځ هغه دطالبانو، مجاهدينو او علماوو ترمنځ نشته خو مبارک روح او سيرت يې، فکر او کردار يې شتون لري ځکه چې روح ته دجسم پشان مرګ نه رازي.

داسمه ده چې نوموړى اوس په جسماني لحاظ فناء دى، خو باور وکړئ! دنوموړي بشري فضايل او مجاهدانه کردار نه فناء کيدونکى دى! او تر څو چې دا جهان وي او پکې دحکومت او واکمنۍ چرچه تازه وي د يو خداى پال واکمن په توګه به دملامحمد عمر نوم او کارنامې هم ژوندۍ وې ! په فقيرانه او درويشانه ژوند به يې راتلونکي نسلونه وياړي، يقين وکړئ! څو پيړۍ به تيرې شي ! دتاريخ ګڼ بابونه او ټوکونه به وليکل شي! لسګونه انقلابونه او بدلونونه به راشي خو دملا محمد عمر دميړانې او قهرمانۍ پاڼه به بدله نشي او نه به ددې ستر مسلمان امير دقربانيو داستان بشپړ شي...!

ومـــا دام ذکرالعبـــد بالفضـــل باقيـــا
فـــذالک حى وهـــو فى الـــتراب هالـــک

دښتن تعالى دقدرتونو او حکمتونو نظام هم زيات عجيبه دى، ځيني انسانان نړۍ ته وروسته راشي خو مرتبه او اجر دړومبنو صديقينو په خواکې ورکوي امام بيهقي په دلايل النبوة کې درسول الله صَلَّىٰ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاندې مبارک ارشاد نقل کړى دى.

انّه سيکون فی آخر هذه الامة قوم لهم مثل اجر اولهم، يأمرون بالمعروف وينهون عن المنکر ويقاتلون اهل الفتن (مشکوة ۵۸۴).

ددې امت په آخر کې به ځيني خلک وي چې هغوی ته به اجر درومبنو برابر ورکول کېږي هغوی به حکم په معروف کوي - منع به له بدو کوي او د فتنه اچونکو خلاف به جهاد کوي.

يعنې امر بالمعروف - د المنکر نه منع کول او دفتنه اچونکو پر ضد جهاد کول ـ دا درېواړه اوصاف داسې دي چې په لرلو يې وروستني درومبنو سره يوځای کېږي، بيشکه علم، تقوی زهد اونور لوړ ايماني او انساني اوصاف چې دهغو په لرلو سره يوتن دالله جَلَّجَلَالُهُ په نزد له خپلو همزولو اومعاصرو خلکو نه مخکي کېدای شي دخپلې زمانې ،امام او مقتدا ګرځېدای شي ليکن اجر وثواب به هغوی ته په هغه پيمانه ورکول کېږي کومه چې د هغه زمانې لپاره ټاکل شوي!او کوم څه چې دوروستنيو زمانو او پيړيو وګړي دورومبني پير له خلکو سره يوځای کوي هغه امر بالمعروف ـ نهی عن المنکر او د اهل فتنه وو پرضد جهاد دی!!

هو! په کامل باور فقيد الملة والدين [امير المؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ د همدې [الاخرون السابقون] له ډلې څخه و! چې درسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مبارک ارشاد په مصداق د [لهم مثل اجر اولهم] له شرف او ستر و ياړ برخمن شو ، افغانستان کې دشراوفساد پرضد د نوموړي مجاهدانه کارنامې او پاڅون دلمر په څېر روښانه دی، دمفسدينو او ظالمانو له منګلو نه مظلومانو ته نجات ورکول ، په لنډه موده کې دشر اوفساد ځالې نړول د هېواد په ۹۵ سلنه اسلامي شريعت پلی کول او ګام په ګام دامربالمعروف نهی عن المنکر فريضه سرته رسول دصليبي يرغلګرو په خلاف بذات پخپله د جهاد ميدان ته تلل هغه اوصاف دي چې دپورتني حديث په استناد نوموړي ته الله جَلَّجَلَالُهُ دوړاندينو صديقينو مرتبه ورکړه...

بله دپام وړ او عمده نيکمرغي ورته دا په برخه شوه چې مرحوم [ امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ پخپل ژوند کې ديوې حق پالې اوپر حق باندې د سرفداء ډلې (طالبانو اسلامي تحريک ) سرخيل او رهبر و ، د داسې ډلې او جماعت په اړه رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وړاندوينه کړې:

لاتزال من امتی ظاهرين علی الحق حتی ياتيهم امر الله وهم ظاهرون (متفق عليه).

زما په امت کې به يوه حق پالونکې ډله هميش په باطل پالونکو غالبه وي تردې چې قيامت راشي.

دا حديث بخاري اومسلم دمغيره په روايت راوړی ، خو هم دا حديث په تغير دالفاظو سره په مختلفو اسنادو مشهور شوی دی او له ګڼو صحابه وو نه مروي دی په مسلم ترمذي او ابن ماجه کې دثوبان په روايت:

لاتزال طائفة من امتی ظاهرين علی الحق لايضرهم من خذلهم ، حتی ياتی امر الله وهم کذلک.

هميشه به زما په امت کې يوه ډله وي چې هغه به دحق او صداقت په اعلانولو کې بريالۍ وي باطل پالان به دهغې ډلې سره مخالفت کوي خو خدای جَلَّجَلَالُهُ به يې د هغوی له ضرر رسولو خوندي ساتي.

يعنې دحق دښمنان او کوم خلک چې ددې ډلې مخالفت کوي هغوی به ورته دنقصان په رسولو کې بری نه مومي.

په اوس وخت کې ديني علماء ،طالبان او مجاهدين هغه څوک دي چې دزمکې په مخ الله جَلَّجَلَالُهُ ته تري بل څوک ګران نشته، دالله جَلَّجَلَالُهُمقبول بنده ګان هم دوی دي، اروابناد امير المؤ منين ددې دريواړو قشرونو داسې امير او لارښودو چې هغوی يې په امارت راضي او راټول ول دا داسې يوه ځانګړتيا او شرف دی چې په نيږدې شاخوا کې بل چاته تراوسه ندی په برخه .

دنړيوال ښکېلاک [امريکا] سره دغره وهل او د هغه د اسلاميت او افغانيت ضد غوښتنو څخه په نره انکارکول ! په وړاندې يې دجهاد او مقاومت دريځ نيول ددې پيړۍ داسې کارنامه ده چې دنړيوال تاريخ لورى يې بدل کړ!! هغه امريکا چې دټولې نړۍ دنيولو په مغرورانه تکل په افغانستان يرغل راوړو،خو مرحوم دخپل ايماني ځواک په مټو داسې له پښو وغورځوله چې آن ټول هوسونه او ارمانونه يې نيمګړي پاته شول، پر ضد يې نړۍ کې نور محکوم ولسونه هم رابيدار شول! کنه ددينه وړاندې هر چاويل:

دامریکا سره جنگ کول ! دغره سره سر وهل دي! لیکن نوموړي پخپل عزم نړیوالوته وښوده چې امریکا یومخ پرزوال هېواد دی امریکا هرڅه کولی شي خو له ځانه مرگ نشي گرځولی! دا په حقیقت کې هم هغه تجدیدي کارنامه ده! هم هغه ویاړ او شرف دی چې په اړه یې مونږ ته رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبر راکړی ابوداود،حاکم او بیهقي له ابوهریره رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ نه روایت کړی چې دالهي دین دتجدید او احیاء کولو لپاره همیشه الله جَلَّ جَلَالُهُ مصلحان ا و مجددان رااستوي، هغوی په هره پیړۍ کې ظهور کوي او دکفر ي ناراوو استیصال کوي.

ان الله تعالی یبعث لهذه الامة علی راس کل مائة سنة من یجدد لها دینها.

الله تعالی په امت کې دهرې پیړۍ په پیل کې یو مجدد پیداکوي څوک چې دخپل روح په ځواک د اسلام مبارک دین ته تازه گۍ اونوې روحیه ببښي.

که واقعبینانه نظر وکړو ارواښاد امیر المؤمنین رښتیا ددې پیړۍ لپاره هغسې تجدیدي کارنامه ترسره کړه څنگه چې دپورتني حدیث په مصداق وړاندې دامت سلفو علماوو ترسره کړیدي! هر کله چې هم په مسلمانانو د انحطاط او زوال سیلۍ را الوتې،په تاریخ کې څو سپېڅلي او دقدسي نفوسو خاوندان وینو چې د هغوی سینې خدای جَلَّ جَلَالُهُ دخپل هدایت درنا خورولو لپاره پرانیستې او زړونه یې دحق پالنې للهیت او اخلاص لپاره مسکن گرځولي په اتمه هجري پیړۍ کې د مسلمانانو دعلمي زوال او انحطاط دوره پیل شوه دعلامه ابن تیمه پیدا کېدل په علومو کې مجتهدانه مقام ترلاسه کول امر بالمعروف نهی عن المنکر ته ملاتړل دچنگیزي یرغل په وړاندې خپله سینه سپر نیول او په مقابل کې یې مسلمانان بیدارول ، پخپله جها دته ملاتړل اوډول ډول ستونزې، شداید او مصایب گالل او دمجاهدینو او علماوو یوه ډله پیدا کول یا دلته (په افغانستان، پاکستان، هند اوبنگال کې ) داکبرپاچا دوره له دې پلوه دیادونې وړده چې د هغه دربار دهغو علماوو نه ډک وو کوم چې ددنیا په هوسونو اوڅونـدون مینان وو، هغوی د دینداری او تقدس په پردو کې نفساني تعصبات او مفسدانه اغراض پالل خو په عین همدې زمانه کې دحضرت شیخ احمد سرهندي پیداکېدل چا چې له یوې بیرته پاته سیمې نه پخپل تندریزغږ لکونه زړونه حق پالونکي گرځول او خپل ټول ځان یې دشریعت دبیا احیاء کولو دحق وینا -امر بالمعروف اونهی عن المنکرلپاره یومخ وقف کول او بیا ددولسمې پیړۍ په پای کې دشاه ولي الله رَحِمَهُ ٱللَّهُ او دهغه دکورنۍ دامربالمعروف نهی عن المنکر او جهاد په لار کې کړیو جهادو نو اوشهادتونو داستان راسپړللوته حاجت نشته...

غرض داچې دڅوارلسمې هجري پیړۍ په پیل کې چې په ټوله اسلامي نړۍ دغرب دپرمختللې ټیکنالوجۍ او وسایلو دډار خپسه ختلې وه، دهیڅ یو اسلامي هېواد واکمن دامریکا په وړاندې سوړ قدر نشو کولی ! امریکا دنړۍ دیوقطبي کولو ډنډوره غړوله ! او په نړۍ یې طوعاً اوکرهاً دگلوبلائزیشن خیالي فلسفه منله! امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ دیو ډېر غریب او بیرته پاته هېواد دزعیم په حیث دامریکا ټول غرور او دبدبه ونړوله او دهیڅ غوښتنې او حکم په وړاندې یې خپل خدای پال سرټیت نکړ داسلامي او افغاني غرور شمله یې هسکه وساتله او دخپل ایماني ځواک په مټو یې مسلمانانو ته وښوده چې په امریکا زوال راتلای شي! پخپل ایماني فراست یې چې دامریکا دزوال اوشکست په اړه کومه وړاندوینه کړیوه ! نن لله الحمد مونږ دامریکا یې ښکلاک دزوال شیبې څارو!دټولې نړۍ نه د ځواکونو را وستلو باوجود امریکا جنگ بایللی عسکر یې له افغانستانه دوتلو په حال کې دي! په دې توگه ویلای شو چې دامریکا په وړاندې جهاد ته دمسلمانانو راوینښول او بیدارول او دنړیوال کفر دمتحد یرغل په وړاندې په فولادي عزم دریدل دامیر المؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ داسې تجدیدي کارنامه ده چې په حقیقت کې دنوموړي دننه دکامل فطرت او د مومنانه فیضان او الهامي فراست ښکارندوې کوي. ولې که ترشاه یې دغیبي تایداتو اشارې نه وای د دومره لوی دښمن سره ډغره وهل اوپه حیرانوونکي ډول هغه ته شکست ورکول او په ټوله نړۍ کې دهغه پرضد مجاهدانه غورځنگونه او و لولې پارول دمعمولي انسان د وس کار ندی!!

دسیاسي ، اقتصادي او پوځي چارو درهبرۍ کولو لپاره  څښتن تعالی ورته  دصحیحه فطرت او هـدایت  هغسې ملکـه بښلې وه کومه چې  الله جَلَّجَلَالُهُ  تل دامت  هغو صلحاوو  تـه  پـه  نصـیب کـړیـوه  دچا پـاکـېزه نفـوس چـې الله جَلَّجَلَالُهُ دانسـانانو د رهـبرۍ او هدایت لپاره غوره کړي، ملاصاحب دهمدې روحاني ارتقاء په لرلو دخلکو په زړونو حکومت کاو، ځکه  هر چاتـه منلـی او گـران  و، نـه یواځې افغاني علماء  طالبان اومجاهدین پرې راټول وو، بلکې عجمو او عربو خپل سیاسي مرشد او امام بالـه!! پـه اوسـني عصر کـې دا ویاړ ډېرو کمو مشرانو ته   په برخه شوی   چې په یوچا  عرب او عجم دواړه  وویاړي ! ذلـک فضـل الله یؤتیـه مـن یشـاء والله ذو الفضـل العظیم !

څنگه چې وړاندې  مو وویل چې دانسان جسم فنا کیدونکی دی خو دهغه بشري  فضایل او کردار   فناء نلري اروابناد ملاصاحب نن که په جسماني لحاظ دمجاهدینو او طالبانو  ترمنځ نشته   خو سیرت اوکردار یې!  مجاهدانه کارنـامې او فقیرانـه ژونـد یـې دهـر طالب او هرمجاهد لپاره ډاډېښونکی دی!  دخپلو قربانیو او فداکاریو پر مټو د سمسور بڼ (اسلامي امارت) د  تروتازه سـاتلو لپـاره یـې له ځان وروسته ښه  باتجربه او روزل شوی  قشر پرېښو د چې هغوی  به خامخا  ددې   بڼ صادقانه  ساتنه او پالنه کوي  او دنومـوړي د جهادي سیاسي او انقلابي مسیر  پرلیکو به درومي او هم  که خدای کول  تول  دیني او ملي  ارمانونه به یې  پوره کوي...

هو! په رښتیا هم   په داسې وخت کې دامیرالمؤمنین  رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ دوفات غمېزه رامنځته کېدل چې دامریکا او صـلیبي ایـتلاف پرضد دنوموړي په مدبرانه  قیادت پیل شوی  جهاد دبري په وروستي پړاو کې دی، خارجي یرغلگر ځواکونه دوتلو په حال کې دي پـه ظاهري لحاظ  یو ستر او نه جبرانیدونکی زیان دی! چې له امله یې دهر مجاهد او طالب که هغه  مشر دی که کشر زړه  ټکان خوړلی ! خو بیا هم الله جَلَّجَلَالُهُ حکیم ذات دی  پخپلو حکمتونو ښه پوهیږي راځئ! دهرچا په ذمه چې  کوم کار او خدمت دی  پـه صـادقانه توگه هغه  پرمخ بوزو!خپلې حوصلې لوړې وساتو  ژوند دجنگ تود ډگر دی دلته دخدمت او کار معنی داده  چې په هرډول حالاتو کې تري مخ په بله ونه گرځوو

او بل   اجازه راکړئ!  چې  داسلامي امارت رهبرۍ شورى  او د اهل حل عقد مشرانو ته د دې  گام پورته کولو  له املـه مبـارکې ووایم  چې هغوی په ډېره هوښیارۍ، دقت   او زیرکتیا   د لویو فتنـو مخـه  ونیـوه،  دصـف دیـو  سـاتلو پـه موخـه یـې  دمرحـوم امیـر المؤمنین دوفات  خبر  دخپرولو وروسته سملاسي  دنوي امیر  په توگه [ملا اختـر محمـد منصـور حفظـه الله) غـوره  او  ور سره بیعـت وکړ!  داهل حل وعقد له لوري  داسلامي امیر غوره کېدل دصحابه وو منهج دی،  ځکه هغوی دمسـلمانانو مصـالح ښـه  پیـژني  څنگـه چې حضرت ابوبکر  صـدیق رَضِيَ‌ٱللَّهُ‌عَنۡهُ درسـول الله صَلَّى‌ٱللَّهُ‌عَلَيۡهِ‌وَسَلَّمَ دفـات وروسـته  دمسـلمانانو خلیفـه غـوره شـو،  پـه ورتـه توگـه  دامیـر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد دوفات وروسته  درهبرۍ شورى   او دامارت دسیاسي او پوځي   مسؤلینو  اوزرگونـه  شـمېر علـماوو لخوا د   ملا اختر محمد منصور سره  دنوي امیر المؤمنین په حیث بیعت کول داسلامي امیر ټاکلو په اړه داسلام  اومسلمانانو ښکاره او متواتر عمل دی، امید دی چې دنوموړي شرعي انتخاب  او بیعت به زمونږ جگړو ځپلي هېواد  او ملت لپاره نیک پال ثابت شي .

داچې داسلامي شریعت له مخې بیعت  خورا اهمیت لري درسول الله صَلَّى‌ٱللَّهُ‌عَلَيۡهِ‌وَسَلَّمَ لارښوونو ته پـه پـام سره  یـو ډېـر درونـد او نازک مسؤلیت دی ،هیڅکله دکومې عادي پېښې ښه نلري  اونه کوم تشریفاتي عمـل دی ،  دمسـلمانانو لپـاره  دیـو شرعـي امیـر سره بیعت کول داسلامي شریعت نه پتېدونکی حکم دی  اسلام هغه ژوند  اسلامي ژوند نه بولي کوم چـې دیـو امیـر تـابع نـه وي!  پـه هـر وخت او هر ځای کې باید دمسلمانانو ډله  دامیر او امام پرته ژوند تیر نکړي!  تردې که یواځې درې مسلمانان هم پاته شي پـه هغـوی لازمه ده چې یوتن دامیر په توگه ونیسي [اذاکان ثلاثة فی سفر فلیومروا  احدهم]  او په احادیثو کې داحقیقت  ښکاره او څرگنـد دی چې کوم یوتن دجماعت له امیر څخه جلا شي دا داسې ده لکه داسلام څخه چې  بیرون شو ، رسول الله صَلَّى‌ٱللَّهُ‌عَلَيۡهِ‌وَسَلَّمَ فرمایي:

من اطاعنی فقد اطاع الله ومن اطاع امیری فقد اطاعنی  ومن عصی امیری فقد عصانی (صحیح عن ابی هریرة).

چاچې زما اطاعت وکړ هغه دالله جَلَّجَلَالُهُ اطاعت وکړ او څوک چې زما دامیر( یعنې نایب) اطاعت وکړي هغه زما اطاعت وکړ او چاچې دامیر څخه سرغړونه وکړه هغه زما د اطاعت کولو نه انکار وکړ، یعنې دامیر المؤمنین اطاعت پخپله درسول الله صَلَّىٰاللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ اطاعت دی، دمسلم په یو روایت کې د[امیری] په ځای یواځي [الامیر] راغلی یعنې هرتن چې دمسلمانانو امیر غوره شو دهغه اطاعت پخپله درسول الله صَلَّىٰاللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ اطاعت دی.

دحجة الوداع عظیم الشانې وینا پرمهال ( چې دوه درې میاشتې وروسته رسول الله صَلَّىٰاللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ دنړۍ څخه رحلت کاوه او خپل وروستی پیغام یې نړیوالوته رساوه وفرمایل:

[ولواستعمل علیکم عبد یقود کم کتاب الله، فاسمعوا له واطیعوا]( مسلم ).

که یوغلام پرتاسې امیرشو او هغه دالله جَلَّجَلَالُهُ دکتاب دحکمونو سره سم پر تاسې حکومت کوي دهغه واورئ او اطاعت یې وکړئ.

بل حدیث دی: من خرج من الطاعة وفارق الجماعة فمات میتة جاهلیة.

او چاچې دمسلمانانو ډله پرېښوده او دامیر داطاعت کولو څخه بیرون شو او په دې حالت کې ورته مرګ راغی نو هغه په جاهلیت ومړ او دابن عمر رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ په روایت کې راغلي:

من خلع یدا من طاعة لقی الله یوم القیامة ولاحجة له ومن مات ولیس فی عنقه بیعة مات میتة جاهلیة.

او چاچې دامیر داطاعت څخه لاس ونیو ( یعنې دهغه اطاعت یې ونکړ ) دقیامت په ورځ به هغه دالله جَلَّجَلَالُهُ په وړاندې راشي، دڅغورنې لپاره به یې هیڅ نه وي اوکوم مسلمان چې دنړۍ څخه په داسې حالت کې لاړ چې دامیر دبیعت له کړۍ یې غاړه وزګاره وه نو(باوروکړئ) چې هغه دجاهلیت په مرګ مړشو.

[من فارق الجماعة شبراً فکانما خلع ربقة الاسلام من عنقه] (ترمذی).

یعنې څوک چې دجماعت څخه دیوې لویشت اومره هم بیرون شو دهغه حکم داسې دی لکه چې هغه داسلام داطاعت کړۍ له خپلې غاړې وایسته اوپه بل روایت کې دي:[دخل النار] (اخرجه الحاکم) یعنې څوک چې دجاعت څخه بیرون شو، دهغه ځای جهنم دی.

لنډه داچې دشرعي بیعت وروسته اسلام په رعیت او ولس باندې نه یواځې دهغه داطاعت کولو دومره تاکید کوي بلکې دالله جَلَّجَلَالُهُ او دهغه درسول صَلَّىٰاللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ داطاعت وروسته یې دامیر اطاعت فرض ګرځولی دی، دیته په کتو باید داسلامي امارت ټول پوځي ، سیاسي ،اقتصادي او اداري چاروکي په کلکه د اسلامي مقرراتو په پام کې نیولو سره دفقید امیر المؤ منین ملا محمد مجاهد رَحِمَهُٱللَّهُ له ځای ناستي امیر المؤمنین ملا اخترمحمد منصور (حفظه الله) څخه هغسي اطاعت وکړي څنګه یې چې دمرحوم کاوه او الله جَلَّجَلَالُهُ دې نوی امیر المؤمنین (منصور صاحب) دخپل سلف [فقید الملة والدین امیر المؤ منین ملامحمد عمر مجاهد] لپاره غوره خلف وګرځوي څو دهغه په پل – پل ایښودو دافغانانو دازادۍ هیلې او ارزوګانې سرته ورسوي او مونږ بشپړ باور لرو چې منصور صاحب به له خپلو خدای ورکړو صلاحیتونو څخه په ګټه دهېواد د علماوو طالبانو ، مجاهدینو اومسلمانانو درهبرۍ د حق په اداء کولو کې یوه دقیقه ځنډ او سستې ونکړي او پخپل ټول توان به دګران هېواد دازادۍ او اسلامي نظام لپاره روا ن جهاد او مبارزه د بري تر منزله ورسوي او هم به په ځان دهېواد علماء، طالبان مجاهدین اومسلمانان هغسې راټول وساتي څنګه چې په ارواښاد امیر المؤمنین رَحِمَهُٱللَّهُ راټول وو! چې هیڅ تن دځان په اړه کوم اجنبیت نه حسوه! په پای کې دعاء کوو چې خدای جَلَّجَلَالُهُ ددې دامارت دانوې دوره هم دصوري او معنوي ځانګړتیاوو له پلوه د امارت د تېرې شانداري او نیکمرغه دورې تسلسل او دوام وګرځوي امین.

په همدې دعاء اوهېله ! ابوظهیر ۱۴۳٦ دشوال ۲۹مه

# د عالیقدر امیر المؤمنین

ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله

## دوفات د اعلان په اړه داسلامي امارت د رهبري شوری اودمرحوم دکورنۍ اعلامیه

بسم الله الرحمن الرحيم

إن الحمد لله؛ نحمده، ونستعينه، ونستغفره، ونتوب إليه، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ومن سيئات أعمالنا، من يهده الله؛ فلا مضل له، ومن يضلل؛ فلا هادي له. ونشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، ونشهد أن محمداً عبده ورسوله، صلى الله عليه وعلى آله وأصحابه وسلم تسليماً كثيرا.

أما بعد. فقد قال الله تبارک و تعالی:

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلاَّ بِإِذْنِ الله كِتَابًا مُّؤَجَّلاً وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الآخِرَةِ نُؤْتِهِ مِنْهَا وَسَنَجْزِي الشَّاكِرِينَ{١٤٥} وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ فَمَا وَهَنُواْ لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللّهِ وَمَا ضَعُفُواْ وَمَا اسْتَكَانُواْ وَاللّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ [١٤٦] وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلاَّ أَن قَالُواْ ربَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِي أَمْرِنَا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ [١٤٧ آل عمران].

ترجمه : او هیڅ یو کس لره دا واک نشته چې مړ شي مګر دالله تعالی په حکم سره په لیکل شوې ټاکلې نیټه به مري،او څوک چې ددنیا اجر غواړي نو له همدې یې برخه ورکوو او څوک چې داخرت اجراو ثواب غواړي نو له هماغه یعنې اخرته یې ورکوو،او زر به شاکرینو ته ښه بدله ورکړو. او ډیر داسې نبیان دي چې په خوا کې یې ډیر خدای پالونکي جنګیدلي دي خو دالله په لاره کې د ور رسیدلو مصیبتونو له امله نه سست شول،نه کمزوري شول او نه یې سرټیټی وکړ او الله همداسې صابرین خوښوي.او ددوی له دې پرته بله خبره نه وه چې ویل به یې: اې زموږ ربه ګناهونه مو راوبخښه او په خپلو چارو کې زموږ تیری راوبخښه او پښې مو ټینګې کړه او پر کافرانو نصرت او بریا راکړه .

مرګ حق دی موږ پردې ایمان لرو چې له الله تعالی پرته هر موجود د مرګ سره مخ کیږي،حتی دالله تعالی تر ټولو محبوب مخلوق د دووجهانونو سردار حضرت رسول اکرم محمد صلی الله علیه وسلم هم د مرګ څکه کړې او له دنیا څخه یې رحلت کړی دی.

همدې حقیقت ته په پام سره د افغانستان د اسلامي امارت مشرتابه او د ملامحمد عمر مجاهد کورنۍ اعلانوي چې داسلامي امارت مؤسس او زعیم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د ورپیښې شوې ناروغۍ له امله خپل روح ملک الارواح ته وسپاره او له دې فاني جهان څخه یې د ابدي نړۍ په خوا سفر وکړ. اناالله وانااليه راجعون .ورحمه الله تعالی رحمة واسعة

ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله علیه د اسلامي امت یو وياړلی او مخلص رهبر و،چې په ډیرو سختو شرایطو کې یې د اسلامي حاکمیت لویدلی بیرغ راپورته کړ، د اسلامي امارت تر نامه لاندې یې یو بشپړ منظم او د اسلامي سیاست په اصولو برابر شرعي نظام تأسیس کړ،الله تعالی دده په توسط نه یوازې دافغانستان په سطحه مؤمنانو ته د اسلامي نظام نعمت وروليدبلکې درست جهان ته یې د واقعي اسلامي حاکمیت نمونه وړاندې کړه.

دا ځو کرښې شاید د نوموړي د ویاړمنو کارنامو د احتوا تاب ونلري،نوځکه اصلي خبرې ته ځو او هغه داچې عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله نور له دې دنیا رحلت کړی،په دې شرایطو کې زموږ دنده دا ده چې له نوموړي راپاتې امانت اسلامي امارت هماغسې وپالو لکه ده مرحوم چې پاللی و،هماغسې اسلامي شریعت ته التزام وکړو،هماغسې مخلص او په الله تعالی متوکل واوسو،هماغسې قرباني ته حاضر او د حق په لاره کې مؤمن، متعهد،متوکل،صابر،ثابت او له الله تعالی څخه ویریدونکي واوسو تر څو الله تعالی همداسې ددې ستر بار د پورته کولو او تر منزله رسولو توفیق راکړي،او همداسې مو د دنیا او اخرت په سرلوړۍ او بریا ونازوي .

مرحوم ملامحمدعمر مجاهد چې دامریکا په مشرۍ دنړیوال کفري یرغل له ټول فشار او تعقیب سره سره په هیواد کې اوسېده اوپه تیرو څوارلسو کلونو کې حتی د یوې ورځې لپاره هم له افغانستان څخه بهر پاکستان یا کوم بل هیواد ته نه دی تللی او له خپل میشت ځای څخه یې د اسلامي امارت چارې رهبرې کولې چې دنوموړي په دې ستر استقامت او له هیواده په نه وتلو کره شواهد او دلایل مو جود دي څه موده وړاندې د ورپیښې شوي ناروغۍ له امله چې دناجوړي په وروستیو دوه اونیو کې سختې زیاته شوه او په حق ورسید.

عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله که جسما یو شخص و مگر په معنوي لحاظ نوموړی یو خوځښت،یوه نظریه او د یوه مقدس ارمان حامل و،که څوک غواړي د هغه روح خوشاله کړي او له هغه سره د وفا ثبوت وړاندې کړي،نوبایـد د نوموړي له میراث اسلامي امارت سره وفا وکړي،د اسلامي نظام د اعادې لپاره په دې شرایطو کې په حیث د مسلمان دازموږ د فرد فرد وظیفه ده چې د اسلامي امارت د قوت،وحدت ، پراختیا او بریا لپاره ټولې هڅې په کار واچوو، ددې گډ کور بنیادونه لا پاخه کړو،څکه زموږ د مسلمان اولس او مجاهد قشر عزت او سرلوړي یوازې د همدغه صف په قوت سره تضمیندلی شي .

مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله اسلامي امارت د یوه ستر خوځښت په حیث په داسې ډول ودان کړی او روان کړی چې ترشا یې جوړ او محکم بنیادونه ، مخلص او باتدبیره ملگري او منظم تشکیلات پرې ایښې دي لهذا مجاهدین او ټول مسلمانان دي مطمئن اوسي،چې دا کاروان به د اسلامي امارت ټول مسؤلین او افراد د الله تعالی په نصرت او دمسلمانانو په ملاتړ د عالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله له ارمانونو سره سم منزل مقصود ته رسوي ان شاءالله تعالی و ماذالک علی الله بعزیز

داسلامي امارت د مشرتابه ، رهبري شورا اود عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله دکورنۍ له پریکړې سره سم به سر له نن یعني د ۱۴۳۶ هـ ق کال د شوال له ۱۴ څخه تر دریو ورځو پورې په ټولو سیمو کې دعلماء کرامو ،د مساجدو د امامانو،قومي او جهادي شخصیتونو،داسلامي امارت د مسؤلینو، مجاهدینو او عام اولس لخوا د مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله روح ته د دعاء په خاطر دقران کریم د ختمونو ،فاتحو او دعاگانو مراسم ترسره کیږي،او له الله تعالی څخه به مرحوم امیرالمؤمنین ته د مغفرت او اسلامي امارت ته د استحکام او بریالیتوب دعاگانې کیږي .

په پای کې باید یادونه وکړو چې د مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد مورنی ورور ملا عبد المنان اخند او د مرحوم ملامحمد عمر مجاهد مشر زوی مولوي محمد یعقوب له ټولومسلمانانو څخه خصوصي غوښتنه کوي چې دمرحوم ملا محمدعمر مجاهد په مشرۍ د اسلامي امارت په واکمنۍ کې که ددوی کوم ډول حقوق تلف شوي وي، نو ټول دې ورته عفو وکړي او په دعاگانو کې دې تل یاد ساتي،موږ په دې ستر غم کې ټول مسلمان امت او په خاص ډول دافغانستان مجاهد ولس له ځان سره شریک بو لو اوټولو ته له الله تعالی څخه دتصلیت او صبرجمیل غوښتونکي یو .

والسلام

دافغانستان د اسلامي امارت رهبري شوری اودعالیقدر

مرحوم ملامحمدعمرمجاهدکورنۍ

۱۴۳٦ هـ ق کال د شوال المکرم ۱۴مه

۱۳۹۴هـ ش کال د اسد ۸ مه

۲۰۱۵میلادي کال د جولای ۳۰ مه



# د اسلامي امارت د نوي امير د ټاکلو په اړه
# د اسلامي امارت د رهبري شورى اعلاميه

الحمدلله رب العلمين والصلوة والسلام على رسوله محمد و على آله وأصحابه أجمعين و بعد

مسلمانانو ورونو!

لکه څنگه چې خبر ياست دافغانستان د اسلامي امارت مؤسس او زعيم عاليقدر اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله عليه څه موده وړاندې د وريپيښې شوې ناروغۍ له امله خپل روح الله تعالى ته وسپاره او له دې دنيا څخه يې رحلت وکړ.

د نوموړي له وفات وروسته د اسلامي امارت رهبري شورا او د هيواد جيدو علماء کرامو اومشائخو د زعامت دټاکلو په چاره لاس پورې کړ، د اسلامي امارت د رهبري شوراغړو، مشائخو او علماء کرامو چې داهل الحل والعقد له شرعي اعتبار څخه برخمن و د يوې غونډې په ترڅ کې يې له اوږدو سلامشورو وروسته د ملامحمد عمر مجاهد نږدې او د اعتماد وړ ملگرى او داسلامي امارت پخوانى مرستيال ملا اخترمحمدمنصور د اسلامي امارت دامير په حيث وټاکه.

ملااختر محمد منصور چې د مرحوم ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله لخوا هم په خپل ژوند کې داعتماد وړ او د درانه مسئوليت د تحمل لپاره وړ کس بلل شوى وو او په کلونو د اسلامي امارت ټولې اجرايوي چارې ورسپارل شوې وې، داسلامي امارت رهبري شورا او علماء کرامو هم نوموړى د راتلونکي لپاره د افغانستان داسلامي امارت د رهبرۍ لپاره مناسب او مستعد شخص وباله او دشرعي امير په حيث يې غوره کړ.

د زعيم ټاکلو په غونډه کې د علماء کرامو، مشائخو او اسلامي امارت د مشرانو لخوا له ملااخترمحمد منصور سره داميرالمؤمنين په حيث على السمع و الطاعة بيعت ترسره شو او نوموړي هم د شرعي امير په حيث، شريعت ته دالتزام تعهد وکړ.

همدا راز د يادې غونډې په مشوره او تائيد هر يو د اسلامي امارت د محاکمو پخوانى عمومي رئيس شيخ الحديث مولوي هيبت الله اخندزاده اود مشهورجهادي او علمي شخصيت مولوي جلال الدين حقاني حفظه الله زوى داسلامي امارت پيژندل شوى جهادي قومندان ملا سراج الدين حقاني د اسلامي امارت د مرستيالانو په حيث وټاکل شول .

د اسلامي امارت رهبر ي شورا د اسلامي امارت دغه تعين شوي زعامت ته دالله تعالى له دربار څخه د استقامت،امانت دارۍ او الهي شريعت ته د وفادارۍ خواست کوي، او مسلمان ملت په ځانگړې ډول د اسلامي امارت ټول مجاهدين يې د شرعي امير په حيث اطاعت ته رابولي.

د افغانستان د اسلامي امارت رهبري شورى

۱۴۳۶ هـ ق کال د شوال المکرم ۱۴مه

۱۳۹۴هـ ش کال د اسد ۸ مه

# د اسلامي امارت د نوي امير له طرفه د ټولو بيعت کوونکو

## له بيعت کولو څخه دقبوليت او منني پيغام

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله رب العالمين ، والعاقبة للمتقين ، والصلاة والسلام علي خير خلقه محمد وعلى آله وصحبه اجمعين وبعد!

يقول الله عزوجل:

وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ (٥) القصص

وياړم چې په داسې حال کې لتاسي سره مخاطب يم چې په مجاهد افغانستان کې د امريکا په مشرۍ کفري ايتلاف شکست خوړلی او ماتې خوړلي ځواکونه يې په ذلت او شرمنده ګي له افغانستان څخه په وتو دي.

لِلَّهِ الْأَمْرُ مِن قَبْلُ وَمِن بَعْدُ وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ (٤) الروم

مونږ په دې پوره باورلرو چې دا لويه بريا لومړی د الله په نصرت اوبيا د افغان مسلمان ولس په بيسارو قربانيو او د اسلامي امت د هر اړخيزه معنوي او مادي مرستو په برکت زمونږ په برخه شوې.

د بهرنيو يرغلګرو په مقابل کې زمونږ ۱۴ کلن مقدس جهاد چې اوس لله الحمد د موفقيت وروستۍ مرحلې ته رسيدلی د امير المؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله په قيادت کې تر سره شوی چې د ا افتخار او وياړ به دتل لپاره د مسلمانانو په تاريخ کې د ده په نوم ثبت وي.

اوس چې نوموړی د الله دتقدير او قضا له مخې وفات شوی او د زعامت او مسؤليت درونـد پيټی د علماوو، جهادي قومندانانو ، مجاهدينو او ټول مجاهد ولس لخوا زمونږ په غاړه را اچول شوی له الله تعالی څخه ځانته په دې درانه مسؤليت حسن توفيق غواړم.

غواړم د خپل دې پيغام په وسيله له ټولو هغو قدرمنو ورونو څخه چې له مونږ سره يې د اسلامي امت په دغو حساسو او سختو شيبو کې خواخوږي او مواسات ښکاره کړی مونږ ته يې د امير المؤمنين د وفات له امله د تعزيت پيغامونه راليږلي ، او يايې هم له مونږ سره د اسلامي امارت د نوی امير او د مسلمانانو دخدمتګار په تو ګه بيعت کړی له هغو ټولو محترمو څخه د زړه له کومې مننه کوم.

د دغو محترمو ورونو له جملې څخه تر ټولو له مخه د نړيوال جهادي تنظيم (قاعدة الجهاد) محترم امير جناب ډاکټر صاحب ايمن الظواهري حفظه الله څخه دهغه بيعت قبلوم، ترې مننه او شکرګذاري کوم چې دتعزيت او مواسات ترڅنګ يې دخپل ځان او خپلو اړونده مجاهدينو بيعت هم مونږ ته راوليږه، همداراز د جهاد په سنګرونو کې د ناستو مجاهدينو ، دمدارسو ، پوهنتونو او علمي مراکزو استاذانو ، د هيواد ملي شخصيتونو او نورو ټولو هغو اسلامي او جهادي شخصيتونو ، جهادي تنظيمونو چې د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه يې د خپلو ځانګړيو پيغامونو په وسيله له مونږ سره غمشريکي کړې او يايې هم له مونږ سره دجهادي امير په توګه بيعت کړی مقابلتا ورڅخه مننه او شکر ګذاري کوو او له الله تعالی څخه د ځان او ټولو ورونو لپاره د اسلام او مسلمانانو د ښه خدمت کولو توفيق غواړو.

والسلام

ستاسوددعاپه هيله

اميرالمؤمنين ملا اخترمحمد منصور

۲۹/۱۰/۱۴۳۶هـ ق

۲۳/۵/۱۳۹۴هـ ش ــ ۱۴/۸/۲۰۱۵م

## داسلامي امارت دمؤسس امير المؤمنين [ملا محمد عمر مجاهد] د وفات له امله دتعزيت او دنوي امير المؤمنين [ملا اختر محمد منصور] سره

# دبيعت پيغامونه

**دعاليقدراميرالمؤمنين رحمه الله دوفات اونوي زعيم دټاکلوپه اړه دسترجهادي شخصيت مولوي جلال الدين حقاني صاحب پيغام:**

الحمد لله الذى جعل كل من عليها فان ويبقى وجه ربك ذوالجلال والاكرام والصلوة والسلام على سيدنا امام المجاهدين المنعوت بشرح الصدر ورفع الذكر الذى حين ارتحل قام صاحبه وقال من كان يعبد محمدا فان محمداقدمات ومن كان يعبدالله فان الله حى لايموت وعلى اصحابه الذين هم مفتاتيح الرحمة ومصابيح الغرر رضى الله عنهم ورضواعنه -----

ددنيا ټولو خواخوږو، اسلامي ملکونو، اسلامي نهضتونو، دافغانستان اسلامي امارت اوخصوصا دعاليقدر اميرالمومنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله کورنۍ، خپلوانو اودوستانو ته

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته !

ديوسالم فکر اوديوې سالمي عقيدې په بنياد بايد دومره ووايو چې دعاليقدراميرالمومنين رحلت دټولې اسلامي نړۍ، اسلامي امارت اوخصوصا داسلامي جهادي تحريکونولپاره لويه خاليگاه گڼواودمرحوم مخلصانه خدمتونه په تمام اسلامي امت باندې نه هيريدونکی احسان بولو . متعال خدای دې عاليقدرمرحوم ته د فردوس جنت اعلی مقام اوکورنۍ ته صبرجميل اواجرجزيل نصيب کړي.

مونږ پوره مطمئن يو چې منصور صاحب په پوره غور اوشرعي طريقه تا کل شوی او دعاليقدرملامحمدعمر رحمه الله کماحقه جانشين دی، مونږ داسلامي امارت ټولوليو او وړو مسولينوته دنومړي سره دبيعت اوپوره اطاعت کامله توصيه کوو، دخپل ځان اودخپل طرف دمجاهدينو لخوادادډرکوو څنگه موچې دعاليقدرمرحوم اطاعت کړی همداراز به ستاسي ترقيادت لاندې داسلام د مبين دين هر حکم ته لبيک وايو.

داچې ددين دښمنانو په مسلمانانوکي هميشه دداسي فرصت څخه بده استفاده کړې ده، لهذا داسلامي امارت ټولوملگرو ته مې ځانگړې توصيه ده چې خپل منځي اتفاق او اتحاد مضبوط وساتئ، هوش چې ددښمنانو دمنفي تبليغاتو ښکارنشئ! خدای مکړه دشلو کالوپه قربانيو اوخدمتو مو خاورې واوړي، - اعاذنا الله من ذلک - نه تنها داچې ا ختلاف به دافغانستان په مستضعف و لس باندې منفي اغيزولري ،بلکي دټولې نړۍ مسلمانان ددې اختلاف ښکارکيدلی شي، لهذاخپل صفونه منظم اوپه اتفاق سمبال وساتئ، خپله توجه دشکست خوړونکي دښمن پرطرف واړوئ ، په اخر کې درته درب لايزال څخه اتفاق ،يووالی، محبت، اطاعت اودمبيني فتحې غوښتونکی يم، خوشاله اوبرياليي اوسئ !.

والسلام عليکم

الحاج مولوي جلال الدين حقاني

# داسلامي امارت دمحترم مرستيال په لاس

# په زرګونو مسلمانانو بيعت وکړ

تيره ورځ جمعه مبارکي ترلمانځه ورسته ديوې سترې غونډې په ترڅ کې زرګونه علماء کرامومشائخو، او نورو متدينو خلکو دختمو نو تر څنګ د اسلامي امارت د مرستيال په لاس داسلامي امارت له نوي زعيم محترملا اخترمحمد منصور سره بيعت وکړ.

پرون له غرمې وروسته د عاليقدراميرالمؤمنين دفاتحې مراسم او له نوى اميرسره د بيعت په منظور دزرګونه هيوادوالولخوا يوه ستره غونډه جوړه شوه.

په غونډه کې په زرهاوو هيوادوالو، مشائخو، علماء کرامو، د مدارسو استادانو، د سنګرونو ګڼو مجاهدينو، دلګۍ مشرانو، نظامي مسئولينو، دګاونډي هيواد پاکستان انصارو مشائخو، علماء کرامو، د الحاج علامه عبدالغني رحمه الله د دارالعلوم مهتمم الحاج مولوى حافظ محمديوسف، نورو استادانو او په جنوبي ولاياتو کې د اسلامي امارت ګڼو مسئولينو، د اسلامي امارت مرستيال شيخ الحديث مولوى هيبت الله، د اسلامي امارت د رهبري شورا غړي الحاج مولوي عبدالکبيرصاحب ، او نورو ګڼو مسئولينو، برخه اخيستې وه.

غونډه د قرآن کريم په څو مبارکو آيتونو سره پيل شوه، وروسته د عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهدرحمه الله پسې دقرآن کريم ختمونه ترسره شوه، بيا داميرالمؤمنين پاک روح ته د مشائخو عظامو لخوا دعاګانې وشوې، د هغه جناب په جهادي مبارزو، د اسلام په لاره کې په سرښندنو، هلوځلو، قربانيو، توکل، صبر، استقامت او د اسلام د سرلوړۍ لپاره په حيرانوکونکو اقداماتو خبرې وشوې، توضيحات ورکړل شول، دخلکو لخوا د اميرالمؤمنين د وفات په اړه د اسلامي امارت مقام، رهبري شورا، د عاليقدراميرالمؤمنين کورنۍ، متعلقينو، ملګرو، مجاهدينو او ټولو مينه والوته دفاتحه خوانۍ او غمرازۍ مراتب ترسره شول.

په غونډه کې ګڼو ګډون کونکو شيخ الحديثانو، علماء کرامو هريوه په خپل نوبت لنډې خبرې وکړې او نوي قيادت سره يې دهرډول همکارۍ وعده وکړه دوى وويل لکه څنګه چې دمرحوم اميرالمومنين تر قيادت لاندې امارت همکاري مو په هر وخت کې کړې همداراز به دنوي امير ملا اختر محمد منصور تر قيادت لاندې امارت همکارۍ ته دوام ور کوو،ورسته ديو عالم لخوا دوينا په جريان کې وويل شول چې زه به داسلامي امارت مرستيال ته دبيعت لاس ور کړم تاسو به دلاسونو په پورته کولو سره دبيعت مظاهره وکړئ چې بيا په ډير جوش اوخروش سره همداسې وشول ، ورسته د اسلامي امارت د رهبري شورا غړو او د اسلامي امارت نوى مرستيال شيخ الحديث هيبت الله اخندزاده په نوبت او تفصيل سره خبرې وکړې، خلکو ته يې د عاليقدر اميرالمؤمنين دوفات په اړه معلومات ورکړل، داهل الحل والعقد شورا لخوا دنوي زعيم د تعين او ورسره دبيعت په اړه يې په ترسره شوو اقداماتو رڼا واچوله، د اسلامي امارت دصف په يو والي يې ټينګار وکړ، د اسلامي امارت د راتلونکي په اړه يې ډاډ ورکړ، د دښمنانو د ټولو دسيسو د شنډولو لپاره د اسلامي امارت د رهبري، مسئولينو، مجاهدينو او مخلصو هيوادوالو په لا ډيره توجه کولوباندې تاکيد وشو.

په غونډه کې د اسلامي امارت درهبري شورا غړي محترم مولوي عبدالکبير په خپلو تفصيلي او عالمانه خبرو کې د عاليقدر اميرالمؤمنين رحمه الله د لارې او مبارزې په تعقيب باندې تاکيد وکړ او ژمنه يې ورکړه چې د اسلامي امارت راتلونکي مشران او مسئولين به په هيڅ قيمت هم له يرغلګرو او دهغو له غلامانو سره هيڅ ډول ناروا معاملو ته حاضر نشي او ترڅو چې د هيواد بشپړه آزادي ترلاسه شوي نه وي او دسوچه اسلامي نظام د راتګ لپاره زمينه نه وي مساعده شوې، ترهغو به دجهاد سپيڅلې لارې ته دوام ورکوي.

**الحاج مولوي عبدالکبیر زیاته کړه:**

کله چې د روسانو په مقابل کې د افغانستان دخلکو مبارزه اوجهاد بریالی شو، غرب او نورو کفري کړیو وغوښتل چې دافغانستان دخلکو دجهاد مسیر بدل کړي، د جهاد په نتیجه کې د اسلامي حکومت د رامنځته کیدو په لاره کې خنډونه واچوي او په هیواد کې د هرج اومرج، چور، تالان، پاټکسالارۍ او خپل منځي جګړو په رامنځته کیدو سره دجهاد آرمانونه له خاورو سره خاورې کړي، او نړۍ ته وښيي چې د هرجهاد پای به دا ډول وي، خو دا مرحوم عالیقدر امیرالمؤمنین وو چې په یواځې سر او په خورا سختو شرائطو کې یې د لږ ملګرو په درلودلو خو په عالي همت، دالله په ذات په فوق العاده توکل او خورا لوړ غیرت سره یې بیرته دجهاد ترخاورو لاندې کیدونکي سپیڅلي آرمان او نتیجې ته په پیچلو شرائطو کې نجات او تحقق ورکړ، اسلامي نظام یې رامنځته کړ او د جهاد په وړاندې د غربیانو او نورکفارو لخوا جوړې شوې دسیسې یې یوپه بل پسې شنډې کړې.

د اسلامي امارت رامنځته کیدل د پخواني جهاد محصول او آرمان وو، داچې بیا د امریکا او نړیوال کفري ائیتلاف لخوا د اسلامي نظام د له منځه وړلو هڅه وشوه او په نتیجه کې یې زموږ هیواد اشغال شو، بیا هم عالیقدر امیرالمؤمنین د اسلامي نظام د حفاظت لپاره دهمت ملاوتړله، ترمرګه پورې یې داسلام له سنګرڅخه دفاع وکړه او د یوې ورځې حتی یوه ساعت لپاره هم دهیواد له حدودو څخه چیرې بهر ونه ووت.

موږ د داسې لوړ همت خاوند امیرالمؤمنین پیروان یو، موږ به دهغه لاره تعقیبوو او داسلامي نظام تر تحقق او دکفارو د ټولو دسیسو د له منځه وړلو لپاره به دجهاد سپیڅلې لار په خپلو ونیو او قربانیو سره پالو، اوس موږ ډاډه یو چې اسلامي امارت ته هیڅوک هم ستونزې نشي جوړولای، امارت خورا باتدبیره رهبري لري، دهیواد دخورا سترې کچې علمي او دیني هستۍ یې ترشاولاړې دي، د خورا عالي مورال مجاهدین او سرښندونکي فدایان یې د دفاع لپاره قربانۍ ورکوي، زه په خپل نوبت ټولو هیوادوالو، د اسلامي امارت مجاهدینو او د نړۍ مسلمانانو او خواخوږو ته ډاډ ورکوم، چې موږ به د عالیقدرامیرالمؤمنین لاره پالو، جهاد ته به د اسلامي نظام تر راتګه پورې ادامه ورکوو، له هیڅ کفري او دسیسه ګر جهت سره د اسلام او اسلامي نظام په سرمعامله نه کوو، دهیچا غلامۍ او هیچاته سرټیټی نه کوو، دجهاد د دوام لپاره په لوی الله جل جلاله توکل لرو، له هغه څخه د نصرت او مرستې غوښتنه کوو، دخپلو هیوادوالو څخه د اسلامي امارت لا ډیر ملاتړ هیله او تمه لرو او دا هم واضح کوو چې نړیوال مطبوعات دخاصو موخو لپاره د اسلامي امارت په ضد پروپاګند کوي، زموږ نظر نه نشر کوي، نو هیوادوال به زموږ په اړه یواځې د اسلامي امارت د انټرنیټي سایټ، ویډیوګانو او چاپي خپرونو څخه معلومات ترلاسه کوي او زموږ په دریځ به ځان له همدې لارې خبروي. ورسته بیا دمازیګر لمونځ اداشو دهغه نه ورسته دیو خاص تر تیب لمخې په نوبت داسلامي امارت دمرستیال هیبت الله آخند زاده سره لاس په لاس دغونډې دګډون والو لخوا دبیعت مراسم تر سره شول .

وروسته د اسلامي امارت مرستیال محترم شیخ الحدیث مولوي هیبت الله اخندزاده دعالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله په ژوند او کارګردګیو باندې رڼا واچوله او ژمنه یې وکړه چې د امارت راتلونکي رهبري به هم د هغه لاره تعقیبوي، خلکوته یې د اسلامي امارت دوحدت ساتلو، دجهادي پرمختګونو د دوام ډاډ ورکړ او له هغو څخه یې د لاملاتړ او ننګې غوښتنه وکړه.

شیخ هیبت الله اخندزاده صاحب دخپلو خبرو په ترځ کې وویل، عالیقدر امیرالمؤمنین موږ ته جوړ امارت راپریښی دی، موږ ټول امارتي تشکیلات لرو، په هیڅ برخه کې ستونزه نه لرو، صرف دنده به مو داوي چې دیوالي په ساتلو سره به ددغه جوړ کور (اسلامي امارت) ساتنه کوواو په دې لاره کې به له هیڅ ډول قربانۍ او سرښندنې څخه سر نه غړوو.

غونډه دمشائخو او علماء کرامو لخوا د دعایو په لوستلوسره پای ته ورسیده.

## د نړیـوال جهـادي تنظـيم قاعـدة الجهـاد دامیـر لخـوا د مرحـوم امیرالمؤمنین د وفـات دتعزیت او له نـوي امیر سره دبیعت پیغام

د نړيوال ستر جهادي تنظيم قاعدة الجهاد امير الشيخ الفاضل دكتور ايمن الظواهري په خپل غږ يز پيغام كې د اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات په اړه خپله ژوره خواشيني څرګنده كړې.

او د اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله په ژوند او دهغه ميړانه يې ستايلې چې دژوند ترپايه د مسلمانانو ترمنځ ديووالي او اتحاد لپاره كاروكړ دهيڅ كفري دښمن په وړاندې يې سرتيټ نكړ اوپه خورا زړورتيا يې سره دصليبې كفر په مقابل كې دجهاد مسير نيولی و.

ښاغلي شيخ ايمن الظواهري حفظه الله وايي لكه څرنګه چې مو له مرحوم اميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله سره يې بيعت كړی وو، په ورته توګه د اسلامي امارت له نوي شرعي زعيم اميرالمؤمنين ملا اخترمحمد منصور حفظه الله سره هم دخپل بيعت تجديد او اعلان كوو. او به ټولو شرعي امورو كې تري په كلكه اطاعت كوو.



## دگونتانامو اسیر اورهبري شورا غړي شهید مولوي امین الله امین دکورنۍ اوملګرو دتعزیت اوبیعت پیغام

داسلامي امارت درهبري شورى غړي دشهید مولوي امين الله امين چي داسلامي امارت په وخت کي دبادغيس ،سمنګان ، او سرپل والي او نظامي مسول دهرات ولایت دنظامي کمیسیون مسؤول مولوي عبدالصمداسیر ،مولوی ادم' مولوی حسین احمد مدنی ' عبدالوهاب'مولوی علاوالدین' او ددوی اړوند د ۱۰ دلګی مشرانو چې په کندهار، هرات ، فراه ، فاریاب او روزګان کې په جهادي فعالیت بوخت دي دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله دوفات له امله دنوموړي درنې کورنۍ اوټولو مجاهدینوته دتسلیت اوتعزیت مراتب وړاندي کوي

نوموړوداسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امیر محترم ملا اخترمحمدمنصور حفظه الله سره بیعت اعلان کړ اود پوره اطاعت وعده یې وکړه

## تمیز دعالي مقام رئس شیخ القران والحدیث مولوی محمدشریف حقانی تعزیت او بیعت

داسلامي امارت له نوي زعیم اولارښود محترم ملااخترمحمدمنصورسره دبیعتونوپه سلسله کې په دې ورستیوکي دهیواددشمال دلسوولایتونو بدخشان. تخار. کندوز.بغلان.سمنګان.مزار.جوزجان.سرپل.بامیان. پنجشیر امارتي مسولینو علماوو.مشایخو مجاهدینو اودمیشتو بیلابیلو قومونو(تاجک.ازبک.ترکمن.هزاره.اومغلو) فه استازیتوب ستره ناسته ترسره اوپه یوه اواز یې له نوي امیرسره دځپل شرعي بیعت اووفادارۍ تعهداعلان کړ.دغې تاریخي ناستي ته دهیواد زبده اونومیالي عالم داسلامی امارت دتمیز ریس شیخ القران والحدیث مولوي محمدشریف حقاني وینا وکړه.

## الحاج محمد ګل، مشهور په (حاجي بابا ناصري) د تعزیت او بیعت پیغام

نحمده و نصلي على رسوله الكريم

اما بعد:

بسم الله الرحمن الرحيم

زه د اسلامي امارت دپخواني زعیم او مؤسس، مجاهد، اتل غازي عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله د وفات د المناکې واقعې په مناسبت د ناصرو د قوم په نمایندګۍ د جناب عالیقدر امیر المؤمنین قدرمنې کورنۍ، د اسلامي امارت مسؤلینو، دسنګر غازیانو، د افغانستان مجاهد ملت او ټول اسلامي امت ته د زړه له کومې تسلیت وړاندې کوم، له الله جل جلاله څخه ټولو ته د جمیل صبر او جزیل اجر غوښتنه کوم.

همدا ډول نوي امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور سره د خپلې کورنۍ او قوم په استازیتوب على السمع والطاعة بیعت اعلانوم. دعاء کوم چې الله جل جلاله امیرالمؤمنین او نائبینو ته یې د شریعت او د جهاد په لار ثبات او استقامت په برخه کړي. امین

په درنښت

(حاجي بابا ناصري) د ناصرو د قوم مشر، او د اسلامي امارت د اقتدار په مهال د ترانسپورټ وزارت معین

## دشهید شیخ الحدیث مولوي عبدالسلام صاحب دکورنۍ دتعزیت اوبیعت پیغام

زه مولوی نعمت الله مخلص دشهیدشیخ الحدیث مولوی عبدالسلام تقبله الله زوی دخپلي کورنۍ او ملګرو په نمایندګي دامارت اسلامی ټولومشرانو خصوصا دامیرالمئومنین رحمه الله کورنی ته دامیرالمئنین دوفات له آمله تعزیت اوتسلیت وړاندی کوم او له الله ج سخه ورته صبر جمیل غواړم اوله نوی امیرالمئومنین ملا اختر محمد منصور حفظه الله سره بیعت کوم.

## دهـرات ولایـت جهــادي مســؤولینو دتعزیـت اوبیعت پیغام

دهـرات ولایـت جهـادي مسؤولین هريـو لکـه الحـاج ملااخترمحمدهلال، حاجي ملادستگیر، ملاعبدالرؤف مخلص ، دشــهید مــلا عبدالحمیــد ورور مــلا محمدحســن ، دشـهیدمولوي بـور زوی ملاعزیـز الله، مولـوي نثـار احمـد، مولوي نسیم ، اودشهید حـاجي اخترمحمـد زوی ملارازمحمـد دهـرات ولایـت دگلـران ، ربـاط سنگي،کشـک کهنـه ، اوبـې ، چشــت شریــف ، زنــده جــان اوشــینډنډ ولســوالیو دټولــو مجاهدینو په نمایندگي دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمـدعمر مجاهــد رحمــه الله درنــې کــورنۍ اوټولــو مجاهــدینو تــه دامیرالمؤمنین رحمه الله دوفات له امله تعزیت وراندي کوو

اوهم داسلامي امارت لپاره ټاکل شوي نوي امیر محـترم ملااخترمحمدمنصـور حفظـه الله سره بیعـت کـوو اوهرشرعـي امربه يې په کلکه اطاعت کوو.

## د کابل ولایت جهادي مسؤل محترم حافظ محب الله صاحب داسلامي امـارت لـه نـوي امیر(منصـور صاحب ) بیعت اعلان کړ

د کابـــل ولایـــت والي محـــترم حـــافظ محـــب الله صـاحب داسـلامي امـارت لـه نـوي امیر ( مـلا اختـر محمـد منصور صـاحب )سره بیعـت اعـلان کـړ، حـافظ صاحب وایـې چې: امیرالمؤمنین رحمه الله په خپل ژونـد کـې اوسـنی امیر (منصو رصاحب ) خپل نائـب ټـاکلی ؤ ، داسي نـه ؤ چـې قحـط الرجال ؤ بلکي واقعیت دادی چې منصـور صاحب ددې کـار لپـاره ډېـر مناسـب او لایـق شخصـیت ؤ او لـه همـدې املـه عالیقـدر امیـر المـؤمنین غـوره کـړی ؤ،نـو لهـذا مـوږ اوس د منصور صاحب په امارت راضي او خوښ یو او دکابل ولایت د مجاهدینو په نمایندگي بیعت ورسره کوو .

## پکتیکا ولایت جهادي مسؤل محترم بـلال فـاتح دتعزیت او بیعت اعلان

دپکتیکا ولایت اوسنی جهادي مسؤل دنومیـالي مجاهـد شـهیدمولوي سـنگین فـاتح ورور محمـد بـلال فـاتح دامیـر المـؤمنین مـلا محمـد عمـر مجاهـد رحمـه الله کـورنۍ او ټولـو مجاهدینو ته تسلیت وړاندي کـړی ،د مرحـوم کـورنۍ اوټولـو خواخوږ ته یې د صبر او اجر غوښتنه کړې، نومـوړی وایـې چـې موږ لکه څرنگه چې دعالیقدر امیر المؤمنین ملا محمـد عمـر مجاهد سره بیعت کړی ؤ، هماغه شان مـو داهـل حـل والعقـد شورى له لوري داسلامي امـارت دنـوي ټاکـل شـوي امیـر مـلا اختر محمد منصور (حفظـه الله ) سره بیعـت دی او دنومـوړي په قیادت کي به خپلي رواني سپېڅلې مبارزې ته دوام ورکوو.

## د جهــادي شخصــیت د اســلامي امــارت د مشرــتابه دفــتر مســئول او د رهــبري شــورا د منشي محترم مـلا عبـد اللطیـف منصـور لـه خوادامیر المؤمنین دوفات پـه اړه د تعزیـت او له نـوي امیر سره دبیعت لیک

د پیاوړي جهادي شخصیت د اسلامي امـارت د مشرـتابه د فــتر مســئول او د رهــبري شــورا د منشيــ محــترم مــلا عبداللطیف منصور لـه خـوادامیر المـؤمنین دوفـات پـه اړه د تعزیت او له نوي امیر سره دبیعت لیک

مـوږ د اسـلامي امـارت دپخـواني زعـیم او د امــارت دمؤسـس، مجاهـد ، اتـل غـازي اود اسلامي امـت د محسـن عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله د وفات د المناکې واقعـې پـه مناسبت ټولو دسـنگر غازیـانو، درهـبري شـورى ټولـو غـړو، د جناب امیرالمـؤمنین قـدرمنې کـورنۍ او ټولـو ځوریـدلو، خپـه شویو او دردیدلو مسلمانانو ته د زړه له کومې تسلیت وړانـدې کوو.

له الله جل جلاله څخه ټولو ته د جمیل صبر او جزیل اجـر غوښتنه کوو، هوډ کوو چې د مرحوم تگ لاره به تعقیبوو، او د

اسلامي امارت نوي قيادت ته دخپل بيعت په وړاندې کولو سره په پوره توګه دنوی مسئوليت د ترسره کولو دعا کوو.

له دوی څخه مو غوښتنه ده چې د مرحوم عاليقدر اميرالمؤمنين او زموږ د مظلوم او مجاهد ولس د زړه آرمان اسلامي نظام د حاکميت لپاره خپلې ټولې هلې ځلې په کار واچوي، موږ يې ترشاولاړيو، په سر او مال يې په اخلاص سره خدمت کوو او هر زار قرباني ورکولوته چمتو يو. والسلام

د اسلامي امارت د مشرتابه دفتر مسئول، درهبري شورا منشي ملا عبداللطيف منصور

## دروزګـــان والي الحـــاج ملامحمديوســـف امين دمجاهد او غيور ملت په نمايندګي خپل بيعت اعلان کړ

له روزګان ولايت څخه په رارسيدلي خبرکې مسؤول مجاهدين وايې چې : تېره ورځ دروزګـان ولايـت دمرکـز ترينکوټ په شمول ددي ولايت په ټولو ولسواليو کې دعلماء کرامو، مشايخو، روحانيونو ، مجاهدينو اوعامه مسلمانانوله لوري په پراخه کچه دعاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد( رحمه الله ) لپاره ختمونه دعاګاني او له نوي امير منصور صاحب حفظه الله سره دبيعت مراسم ترسره شول

نن سهار هم ددي ولايت دمرکز اوولسواليو په مربوطاتوکې دقرآن کريم ختمونه اودعاګاني ترسره شوي او دهمدي ولايت لپاره داسلامي امارت والي محترم الحاج ملامحمديوسف أمين صاحب دروزګان ولايت دغيورو قهرمانو اومجاهدپرور ملت ، مجاهدينو اوعلماء کراموپه نمايندګي نن سهار له نوي ټاکل شوي امير ملااخترمحمد منصور حفظه الله سره دبيعت اعلان وکړ

نوموړي داسلامي امارت له رهبري شورا اومخلصينو څخه مننه وکړه چې په ډېرحساس وخت کې يې دمجاهدينولپاره يوښه اميرانتخاب کړ

## دهلمند ولايت جهادي مسؤل الحاج ملا عبدالمنان داسلامي امارت له نوي زعيم عاليقدر ملا اختر محمد منصور صاحب سره بيعت وکړ

دهلمند ولايت جهادي مسؤل الحاج ملا عبدالمنان داسلامي امارت له نوي زعيم عاليقدر ملا اختر محمد منصور صاحب سره بيعت وکړ .

دهلمند ولا يت جهادي مسؤل الحاج ملا عبدالمنان په يوه مخابروي پيغام کي داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امير ملا اخترمحمد منصور (حفظه الله ) سره بيعت اعلان کړ، نوموړي وايې چې لکه څنګه يې چې د عاليقدر امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد (رحمه الله ) سره بيعت کړی ؤ او دهغه مرحوم په قيادت کي يې جهاد کاوه اوس به د نوي ټاکل شوي امير منصور صاحب تر قيادت لاندي خپل جهاد ته دوام ورکوي او نوي مشرتابه داوامرو مطابق به خپل خدمت جاري ساتي .نوموړي پرټولو مجاهدينو ږغ وکړچې داختلاف له مهلکي ناروغۍ څخه ځانونه وساتي ، ځکه داختلاف ټوله ګټه دښمن ته رسيږي

## دمحترم حاجي امان الله شبير دتعزيت اوبيعت پيغام

داميرالمؤمنين رحمه الله دخاص دفتر دمخابراتو دځانګي دمخابرو دترميم چاري ورپه غاړه حاجي امان الله شبير دخپلي کورنۍ اودخپلي دلګۍ دنظامي ملګرو اوناصر قوم دډيری مشرانو په نمايندګي دعاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله دوفات له امله دنوموړي قدرمني کورنۍ اوټولو مسلمانانوته دتسليت مراتب وړاندي کوم

او موږ داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي زعيم اميرالمؤمنين ملا اخترمحمد منصور صاحب حفظه الله سره دبيعت اعلان کوو او دپوره اطاعت اوهمکارۍ وعده ورسره کوو. والسلام حاجي امان الله شبير

## د کاپيسا ولايت والي قاري بريـال صـاحب دتسليت او بيعت اعلان

دکاپيسا ولايت جهادي مسؤل [قاري احسان الله بريـال صاحب) دعاليقدر اميرالمؤمنين رحمه الله له کورنۍ اوټولـو مجاهدينو سره دمرحوم امير امير المومنين دمړيني لـه امله غمشرـيکي وړانـدي کـړ ه ، بريـال صـاحب داهـل حـل والعقـد شوری له لوري دنومـول شـوي اميـر مـلا اختـر محمـد منصـور صاحب سره بيعت اعـلان کـړ او هـوډ يې وښـود چې د نـوي مشرتابه تر قيـادت لانـدي بـه خپـل سپېڅلي جهـاد تـه ادامـه ورکوي

## پيـام تسـليت وبيعـت مسـؤل عمـومی مجاهدين ولايت بدخشان

بسم الله الرحمن الرحيم. كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الآيه.

الحمد لله الذی جعل کل من عليها فان ويبقی وجه ربـک ذوالجـلال والاکـرام والصـلوة والسـلام علـی سـيدنا امـام المجاهـدين سيدالانصـاروالمهاجرين الـذی حـين ارتحـل قـام صاحبه وقال من کان يعبد محمدا فان محمداقدمات ومن کان يعبدالله فان الله حی لايموت وعلی اله واصحابه اجمعين.

رحلـت عـالی قـدر اميرالمـؤمنين ملامحمدعمرمجاهـد رحمه الله را ضايعهء بـزرگ وجبران ناپـذير بـرای جهـان اسلام بخصـــوص بـــرای امـــارت اســـلامی و ملـــت متـــدين ومجاهدافغانســـتان دانســـته وخـــدمات مخلصـــانه مرحـــوم اميرالمـؤمينين رحمـه الله را بـرای تمـام امـت مسلمه احسـان فراموش ناشدنی ميدانم،ازخداوند متعـال بـرای مرحـوم مقـام اعلی جنت الفردوس وبـرای خـانواده ايشـان صبرجميل واجـر جزيل استدعا دارم،ما خود را دراين غم شريک ميدانيم.

مـا کـاملاً مطمـئن هسـتيم کـه ملااخترمحمـد منصـور صاحب بسيار بـه غـور وطريقـه شرعـی بحيـث اميرالمـؤمنين منتخب گرديده وکماحقـه جاينشين عاليقـدر ملامحمـد عمـر رحمه ميباشند،لذا من به نماينـدگی ازمجاهـدين،علماء،طلباء ومـــردم متـــدين ومخلـــص ولايـــت بدخشـــان بـــا محترماميرالمؤمنين ملااخترمحمدمنصورزعيم امارت اسلامی بيعت خويش را ابراز نمـوده ودرچوکـات شريعـت غـرّا محمـد صلی الله عليه وسلم خود را مکلف بـه اطاعـت ايشـان دانسـته وبرای ايشان ازبارگاه الهی درپيشبرد امورجهادی توفيق مزيـد استدعادارم .وتحت قيادت اميرالمـؤمنين بـه هـرحکم شرعـی لبيک ميگويم.

والسلام .مسؤل مجاهدين ولايت بدخشان مولوی فصيح الدين صائب

## د ميـــدان وردگ ولايـــت والي مولـــوي احمدالله منصور داسلامي امارت له نوي امير سره بيعت اعلان کړ

د ميـــدان وردگ ولايـــت والي مولـــوي احمـــدالله منصـور داسلامي امـارت لـه نـوي اميـر سره د خپـل ځـان ،مجاهدينو،علماوو اوولس په نمايندگي بيعت اعلان کړ

د ميـــدان وردگ ولايـــت والي مولـــوي احمـــدالله منصور داسلامي امارت له نوي امير ( ملا اختر محمد منصور صـاحب ) سره د خپـل ځـان ،مجاهـدينو،علماوو اوولـس پـه نمايندگي بيعت اعـلان کـړ، نومـوړي وايـې چـي لـه تېـرو دووو ورځو راهيسي ددغه ولا يت په مختلفو ولسواليو او سيمو کي داسلامي امـارت لـه نـوي ټاکـل شـوي اميـر سره علـماء کرامـو ،مجاهدينو اوولس خپل بيعت وکړ

## د سرپـــل ولايـــت والي مـــلا عطـــاء الله عمر صاحب دتعزيت او بيعت پيغام

دسرپـــل ولايـــت لپـــاره داســـلامي امـــارت جهـــادي مســـؤل صـــاحب دعاليقـــدر اميرالمـــؤمنين رحمـــه الله کـورنۍ اوټولـو مجاهـدينو تـه تعزيـت وړانـدي کـړ، نوموړي وويـل چـي دنـوي اميـر منصـور صـاحب سره د خپلـو مجاهـدينو پـه نماينـدگي بيعـت اعلانـوي او دمحـترم مشرـ منصور صاحب په رهبري کي به ديرغلگرو اودهغو ی دغلامانو په خلا ف جهاد روان ساتي

## د پنجشـــیر ولایــت والي  مولــوي قـــدرت الله صاحب  دتعزیت او بیعت پیغام

دپنجشیر  ولایت لپاره داسلامي امارت جهادي مسؤل مولـوي قـدرت الله  صـاحب   دعالیقـدر امیرالمـؤمنین  رحمـه الله  کـورنۍ  اوټـول مسـلمه امـت تـه تسـلیت وړانـدي کـړ، نوموړي  په یو ډېغیز پیغام کي داهل حل والعقد شورى لـه خـوا داسلامي امارت دنوي ټاکل شوي امیر ملا اختر محمد منصـور (حفظـه الله ) سره   بیعـت وکـړ اوهـوډ یـې وښـود چـي داسـلام اوهیواد څخه د دفاع په لار کي به  د محترم منصور صاحب په مشري  جهاد جاري ساتي

## د فـــراه  ولایـــت جهـــادي مســـؤل مولـــوي بازمحمد صاحب  دتعزیت او بیعت پیغام

دفـــراه  ولایـــت لپـــاره داســـلامي امـــارت جهـــادي مسؤل  مولوي بازمحمد  صاحب  داسلامي امارت دنـوي ټاکـل شوي امیر ملا اخـتر محمـد منصـور (حفظـه الله ) سره   بیعـت وکړ، نوموړی وایې چي  داسلامي امارت دنوي ټاکل شوي زعیم ملا اختر محمد منصور صاحب  (حفظه الله ) تـر امـارت لانـدي به خپـل جهـاد تـه دوام ورکـوي او  ددیـن او وطـن خـدمت بـه جاري ساتي .

## اســـلامي امـــارت  داستشـــهادي کنـــډک دمسؤل ملاتاج میـر جـواد صـاحب  دتعزیـت اوبیعت اعلان

دافغانستان  داسلامي امارت داستشهادي  کنډک مسؤل ملا تاج میر جواد صاحب دعالیقدر امیرالمـؤمنین مـلا محمـد عمـر مجاهدرحمـه الله روح تـه دددعـا ء تـر څنـګ  دمرحـوم کورنۍ او ټولو مجاهدینوته تسلیت وړاندي کوي .

جـواد صـاحب د خپلـو ملګـرو، دشـهیدانو د کورنیـو، او اسـیرانو پـه نمایـنـدګي داهـل حـل والعقـد شـورى لـه لـوري  د نومول شوي  امیـر  امـلا  اخـتر محمـد منصـور حفظـه الله   سره بیعت اعلان کړ،نوموړي ټول مجاهدین اتحاد اواتفاق ته رابللي او ورته توصیه کوي چې داختلا ف  دمهلکي نـاروغۍ څخـه  ې دځانونه و ساتي ، جواد صاحب  نـوي امیـر  تـه پـه خطـاب کـي وایې: چي لکه څنګه چي مو دامیر المؤمنین  په قیادت او امـر داسلام پر دښمانانو ګوزارونـه کـول همـدا راز بـه ستاسـو( مـلا اختر محمد منصور  )پـه قیـادت کـي  داسـلام  او افغـان ولـس دښمنانانو ته دعبرت درس ورکوو اودخپلو ارزښـتونو څخـه بـه دفاع کوو.

## دبادغیس ولایـت مســؤول الحــاج مولــوي عبـــدالقیوم روحـــاني دټولـــو مجاهدینوپـــه نمایندګي خپل بیعت اعلان کړ

دبـادغیس ولایـت مسـؤول الحـا ج مولـوي عبـدالقیوم روحاني پـرون ورځ دهمـدي ولایـت پـه مرغـاب ولسـوالۍ کـې دبادغیس ولایت له مختلفـو ولسـوالیو څخـه  زرګونـه  علـماء ، مجاهدین اوعامه مسلمانان راغوښتي وو اودیوې پراخي غونډې په ترڅ کې یې دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمـدعمر مجاهـد( رحمه الله تعالى ) لپاره دقرآن کـریم خـتم ، دعاګـاني اوفاتحـه ترسره کړل.

وروسته ټولو علماء کرامو ، مجاهدینو اوعامـه مسـلمانانو داسـلامي امـارت لـه نـوي ټاکـل شـوي امیـر ملااخترمحمـد منصور ) حفظه الله ) سره په یوه غږ بیعت اعلان کړ  او داوعـده یې وکړه چي د نوي  ټاکل شوي امیر (محترم منصـور صـاحب ) په قیادت کي به جهاد ته ادامه ورکوي

## پروان  ولایت د جهـادي مسـؤل ملامحمـد نسیم دتسلیت او بیعت  پیغام

دپـروان  ولایـت جهـا د ي مسـؤل مـلا محمـد نسـیم ،مرسـتیال یـې مـلا عبـدالکبیر او دکمیسـیون  مسـؤل قـاري صاحب نظر ګل   دامیر المؤمنین رحمه الله دوفـات لـه املـه د مرحوم کورنۍ او ټولو مجاهدینو تـه تسـلیت وړانـدي کـړی  او دنوي زعیم ملا اخترمحمـد منصـور صـاحب سره خپـل بیعـت اعلان کړی  ، دوی وایې چي داسلامي امارت د نوي زعیم  ملا

اختر محمد منصور صاحب په قیادت کي به خپل جهاد ته دوام ورکوي

## د بلخ ولایت جهادي مسؤل محترم ملا محمد یونس مخلص دتسلیت او بیعت پیغام

دبلخ ولایت جهاد ي مسؤل ملا محمد یونس مخلص دامیر المؤمنین رحمه الله دوفات له امله د مرحوم کورنۍ او ټولو مجاهدینو ته تسلیت وړاندي کوي او دنوي زعیم ملا اخترمحمد منصور صاحب سره خپل بیعت اعلانوي ، مخلص صاحب وایي چي دنوي زعامت په مشرتوب کي به خپلي رواني سپېڅلي مبارزي ته دوام ورکوي او ددین او وطن د حفاظت په هدف به خپل خدمت جاري ساتي

## د بامیانو ولایت جهادي مسؤل مولوي احمد طه داسلامي امارت له زعیم سره بیعت اعلان کړ

دبامیان ولایت لپاره داسلامي امارت جهادي مسؤل مولوي صاحب احمد طه داسلامي امارت دنوي ټاکل شوي امیر ملا اختر محمد منصور (حفظه الله ) سره بیعت وکړ، نوموړی وایي چي داسلامي امارت دنوي ټاکل شوي زعیم ملا اختر محمد منصور صاحب (حفظه الله ) تر امارت لاندي به خپل جهاد ته دوام ورکوي او ددین او وطن خدمت به جاري ساتي

## د څلور و ولایتونو د نظامي حلقې مسؤل مولوي ندا محمد ندیم داسلامي امارت له زعیم سره بیعت اعلان کړ

دفاریاب ، بادغیس،سرپل او غور ولایتونو د نظامي حلقې مسؤل مولوي ندا محمد ندیم صاحب داسلامي امارت دنوي ټاکل شوي امیر ملا اختر محمد منصور (حفظه الله ) سره بیعت اعلان کړ، او ویې ویل چي داسلامي امارت دزعیم ملا اختر محمد منصور صاحب سره بیعت کوي او په قیادت یې فخر کوي

## د کونړ ولایت جهادي مسؤل مولوي محمد عمر مخلص داسلامي امارت له زعیم سره بیعت اعلان

دکونړ ولایت لپاره داسلامي امارت والي محترم مولوي محمد عمر مخلص دامیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله کورنۍ او ټولو مجاهدینو ته تسلیت وړاندي کړ ،نوموړي وایې چي د کونړ ولایت د مجاهدینو او ولس په نمایندګي داسلامي امارت دنوي ټاکل شوي امیر ملا اختر محمد منصور (حفظه الله ) سره د بیعت اعلان کوي او دنوموړي په قیادت کي به خپلي رواني سپېڅلي مبارزې ته دوام ورکوي

## داسلامی امارت دکار او امور اجتماعی سابق وزیرمحترم مخدوم مولوی عبدالسلام سعادت تعزیت او بیعت

داسلامی امارت له نوی زعیم اولارشود محترم ملااخترمحمدمنصورسره دبیعتونوفه سلسله کی په دی ورستی وکی دهیواددشمال دلسوولایتونو بدخشان .تخار.کندوز . بغلان. سمنگان.مزار.جوزجان.سرپل.بامیان. پنجشیرامارتی مسولینو علماوو.مشایخو مجاهدینو اودمیشتوبیلابیلوقومونو (تاجک. ازبک.ترکمن.هزاره .اومغلو) فه استازیتوب ستره ناسته ترسره اوفه یوه اواز یی له نوی امیرسره دخفل شرعی بیعت اووفاداری تعهداعلان کړ.دغی تاریخی ناستی ته داسلامی امارت دکاراواموراجتماعی سابق وزیرمحترم مخدوم مولوی عبدالسلام سعادت ویناوکړه

## دملکي تلفاتو دمخنیوي اداري د مسؤل دتعزیت او بیعت پیغام

دافغانستان د اسلامي امارت دملکي تلفاتو دمخنیوي اداري د مسؤل او پخواني جهادي قوماندان الحاج ملا عبدالقهار د عالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر (رحمة الله علیه) کورنۍ اوټولو مجاهدینو ته د دغه لوی غم په اړه

تسلیت وړاندي کړی او تر څنګ یې له نوي مشر ـ امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) سره د یادې اداري او د زابل ولایت د دایي چوپان ولسوالۍ دعلماء کرامو په نمائندګي د بیعت اعلان وکړ

## دمؤسسـواوشرکتونو دکنـترول اوتنظـیم کمیسیون دریـس الحـاج مولـوی عبـدالرحمن صـاحب، دکمېسـیون داعضـاؤاو ولایتـی نمایندګانو دتعزیت اوبیعت اعلان

دافغانستان اسلامی امارت دمؤسسواوشرکتونو دکنـترول اوتنظیم کمیسیون دریس الحاج مولوی عبدالرحمن صاحب ،دکمېسیون داعضاؤاو ولایتی نمایندګانودتعزیت اوبیعت اعلان:دافغانستان داسلامی امارت دبانی مرحوم حضرت امیرالمومنین ملامحمدعمرمجاهد نورالله مرقده دتعزیت اوتسـلیت مراتـب دده مرحـوم کورنی،دمشرتابه مقام،ټولومجاهدینو اوټولومسلمانووروبوته وړاندی کوو.دنوی امیرالمومنین ملا اخترمحمدمنصور حفظه الله سره دخپل بیعت اعلان کوو ،الله تعالی دی ددې درانه مسؤلیت دسرته رسولو توفیق ورکړی.آمین

## کندهارولا یت د سپین بولدک اوشـوراوک د ولسوالو مشهورمشرانو مجاهدینو د تعزیت او بیعت لیک

د کنـدهارولا یـت د سـپین بولـدک د ولسـوالۍ مشهورمشران مجاهدین هریولکه حاجی ملامحمد عیسی اخنددمعدن او صنائع وزیر، حاجی ملا امین الله یوسف حاجی دارزګان ولایت جهادی عمومی مسؤل ،ملانیک محمد حاجی ملنك دشوراوک اوریکستان مسؤل، ملاعبدالجبارحکمت دولایتی کمیسون پخوانی غړی اوتکړه مجاهد،حاجی مولوی عبدالشکور داوقافو عمومی مسؤل اوبیادکابل کمرک رئس ، مو لوی اخترمحمد صاحب دبولدک پخوانی ولسوال،حاجی ملاعطاؤ الله، حاجی قاری حمد الله دبرق وزارت مرستیال، ملاشیخ محمد دبولدک پخوانی ولسوال، ملاحمدا لله ،ملاعبدالغنی، حاجی ملارحمت الله د قاری خیرالله ملګری، ملامحمدمیر، ملاعبدالحی، دامیرالمومنین ملا اخترمحمدمنصورسره بیعت اعلانوی اوپه ټولوشرعی اموروکی به دنوی مشرمکمل اطاعت کوی.

همدراز دکندهارولایت دشوراوک دولسوالی مسئول حاجی ملنګ اونظامی کمیسیون اوشرعي ابتدائیه محکمي مسؤل اوټول مجاهدین دامیرالمؤمنین رحمه الله دوفات له امله دمرحوم کورنی اوټولو مسلمانانوته تسلیت وړاندی کوی، داسلامی امارت له نوی زعیم عالیقدر ملااخترمحمدمنصورصاحب سره دمجاهدینواوعام ولس په نمایندګی بیعت اعلانوی

## جوزجان ولایت والي مولوي عبدالرحمن دتسلیت اوبیعت اعلان

دجوزجان ولایت لپاره داسلامي امارت جهادي مسؤل مولوي عبدالرحمن د ټولو مجاهدینو،او عامو ولس په نمایندګي دامیر المؤمنین رحمه الله دوفات له امله دتعزیت مراتب وړاندي کړل ،نوموړي داهل حل والعقد شورى له خواداسلامي امارت له زعیم ملا اختر محمد منصور سره په سمع او طاعت سره بیعت اعلان کړ

## دغزني نومیالي قوماندان ملا جان محمد اودهلمندپخواني امنیه قومندان ملاعبدالحق دتسلیت اوبیعت پیغام

دهلمند ولایت پخواني امنیه قوماندان او غزني کي دجهادي محاذ اوسني قوماندان ملا جان محمددامیر المؤمنین رحمه الله دوفات په اړه تسلیت وړاندي کړاو داسلامي امارت له زعیم ملا اختر محمد منصور سره یې بیعت اعلان کړ نوموړی ژمنه وکړه چي د منصور صاحب په قیادت کي به خپل جهاد ته دوام ورکوي اود صلیبي یرغلګرواو داخلي مزدورانو پرضد به یې نه ستړي کیدونکي هلي ځلي کوي

## د دایکنډي جهادي مسؤل ملا سلیمان اغـا دتسلیت اوبیعت پیغام

دډایکندي والي ملا سلیمان اغادامیر المـؤمنین رحمـه الله دوفات پـه اړه تسلیت وړانـدي کـړاو داسلامي امـارت لـه زعـیم مـلا اخـتر محمـد منصـور سره یـې بیعـت اعـلان کړ نوموړی ژمنه وکړه چي د منصور صاحب په قیادت کي بـه خپلي سپېڅلې مبارزې ته داوم ورکوي

## د نیمروز ولایـت جهـادي مسـؤل مولـوي عبدالعزیز دتسلیت او بیعت اعلان

د نیمـروز ولایـت لپـاره داسـلامي امـارت والي مولـوي عبدالعزیز د مرحوم امیـر المـومنین رحمـه الله کـورنۍ اوټولـو مسلمانانو ته تعزیت وړاندي کړ ،نومـوړی وایـې چي پـه یـوه لویه غونډه کي چي علـماء ، مجاهـدین اوعـام مسـلمانان پکي موجود وو ټو لو په یوه اوازداسلامي امارت لـه زعـیم مـلا اخـتر محمد منصور سره بیعت اعلان کړ او منصـور پـه قیـادت کـي یې دجهادي جاري ساتلو وعده وکړه

## د شیخ القران والحدیث عنایت الله برهانـي دتسلیت او بیعت اعلان

د شیخ الحـدیث والقـران عنایـت الله برهـاني د مرحـوم امیر المومنین رحمه الله کورنۍ اوټولو مسلمانانو ته د تعزیت مراتـب وړانـدي کـړل ،برهـاني صـاحب داسـلامي امـارت لـه زعیم ملا اختر محمد منصور سره بیعـت اعـلان کـړ او وویـې ویل چي لکه څرنګه چـي منصـور صـاحب داهـل حـل والعقـد شوری له خوا ټاکل شوی موږ ته هم پـه سراو سـترګو قبـول دی او اطاعت یې کوو

## د ملا اخترمحمد منصور حفظـه الله سره دنورستان ولایت علماوو او مجاهدینو بیعـت اعلان کړ:

د نورستان ولایت مرستیال والي مولـوي صـاحب منیـب الله په لاس باندي علماء او مجاهـدین داسـلامي امـارت دزعـیم عالیقدر منصور صاحب سره و بیعت کړ او ژمنه یې و کړه چـي د منصور صاحب په قیادت کي به پـه سـختۍ او سـانۍ کـي خپل جهاد ته ادامه ورکوي

## داسلامي امارت د معسکر مسؤل نـومیالی قومانـدان سـید علاوالدین اغا دتعزیت اوبیعت پیغام

د اسلامي امارت دمعسکر مسؤل نومیالی قوماندان سید علاوالـدین اغـا د مرحـوم امیـر المـومنین رحمـه الله کـورنۍ اوټولو مسلمانانو ته دتعزیت مراتب وړاندي کړل ،محـترم اغـا صاحب د عالیقدر ملا اختر محمـد منصـور سره بیعـت اعـلان کړ او زیاته یې کړه چي نور بایـد دمنصـور صـاحب سره بیعـت کي غفلت او ځنډ ونه شي ، ځکه دښمنانان داسلامي امارت پر ضد بده استفاده ورنه کوي

## دکندهارولایت دپخـواني جهـادي مسـؤول ملامحمدعیسی اخند دتعزیت اوبیعت پیغام

دکنـدهارولایت پخـواني جهـادي مسـؤول محـترم مـلا محمد عیسی اخند: دعالیقـدر امیرالمـؤمنین مـلا محمـدعمر مجاهد رحمه الله د وفات لـه املـه دنومـوړي کـورنۍ اوټولـو مسلمانانوته تسلیت وړاندي کوم

داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي زعیم عالیقدر محترم ملااخترمحمدمنصور صاحب حفظـه الله سره بیعـت اعلانـوم او دنوموړي په قیادت کې به دجهاد سپیڅلي فریضې تـه ادامـه ورکوم . ان شاء الله العزیز

## د تخار ولا یت والي مولوي امین الله طیـب د تعزیت اوبیعت اعلان

د تخار ولا یت جهادي مسـؤل مولـوي امـین الله طیـب د مرحوم امیر المومنین رحمـه الله لـه کـورنۍ اوټولـو مسـلمانانو ته دتعزیت مراتب وړاندي کوي ،د عالیقدر مـلا اخـتر محمـد منصـور سره بیعـت اعلانـوي او ډاډ ورکـوي چـي دمنصـور

صاحب حفظه الله په مشرۍ کې به خپل جهادي خدمت جاري ساتي

## د خوست ولایت مرستیال والي مولوي احمد علي جان احمددتسلیت اوبیعت پیغام

دخوست مرستیال والي مولو ي احمد علي جان احمد دامیر المؤمنین رحمه الله د وفات له امله د مرحوم کورنۍ اوټولو مسلمانانو ته تسلیت وړاندي کړی، داسلامي امارت له نوي زعیم عالیقدر ملا اختر محمد منصور د مجاهدینو او عام ولس په نمایندګي بیعت اعلان کړی اوپرمجاهدینو یې ږغ کړی چي له نوموړي امیر سره بیعت وکړي ، دخپل صف متحد والی ته ډیره پام وکړي څکه ددغه پاک صف بیلوالي ددښمن لویه ارزو ده

## دهیواد جهادي شخصیت مولوي عبدالستار (صدیقي) صاحب د تسلیت او حمایت پیغام

د هیواد دنومیالي عالم او جهادي شخصیت او دحرکت انقلاب اسلامي افغانستان پخوانی مرستیال مولوي عبدالستار (صدیقي)صاحب د مرحوم عالقیدر امیرالمؤمنین کورنۍ ته دتعزیت مراتب وړاندي کړي، له نوي ټاکل شوي امیر ملا اختر محمد منصور حفظه الله څخه یې دحمایت اظهار کړی ،او دافغانستان له ټولو مجاهدینو،اوعامو مسلمانانو څخه یې کلکه غوښتنه کړې چي د اسلامي امارت لپاره د ټاکل شوي امیر اطاعت،ملاتړ او لاسنیوی وکړي

## د بغلان ولایت والي ملا محمد اسماعیل صاحب دتسلیت او بیعت پیغام

دبغلان ولایت جهادي مسؤل ملا محمد اسماعیل صاحب دعالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله له کورنۍ اوافغان ولس سره دمرحوم امیر المومنین دوفات په ویر کي ځان شریک ګڼي ،داسلامي امارت مشرتابه اوټولومجاهدینو ته تسلیت وایي اود نوي زعیم ملا اختر محمد منصور صاحب سره یې بیعت اعلان کړ،نوموړي وویل چي دمنصور صاحب په مشرتوب کي به خپل جهاد ته دوام ورکوي .

## د ننګرهار ولایت مرستیال والي شیخ زر محمدصاحب دتسلیت او بیعت اعلان

دننګرهار ولایت مرستیال والي شیخ زرمحمد صاحب دعالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله له کورنۍ اوټولو مجاهدینو سره دمرحوم امیر المومنین دمړیني له امله غمرازي وښوده، نوموړي د ننګرهار دمجاهدینو او ولس په نمایندګي داهل حل والعقد شورى له لوري دغوره شوي امیر ملا اختر محمد منصور صاحب سره بیعت اعلان کړ او همدا راز یې هوډ وښودچي د نوي امیر منصور صاحب په امارت کي به دخپلي برحقې داعیې څخه دفاع کوي اوخپل جهادته به دوام ورکوي

## د نظامي کمیسیون دغړي حافظ نورالله صاحب د تعزیت او بیعت پیغام

دحیرتان د ۷۰ فرقې پخواني قوماندان او اوس مهال دافغانستان اسلامي امارت دنظامي کمیسیون غړي حافظ نور الله صاحب د عالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر (رحمة الله علیه) کورنۍ اوټولو مجاهدینو ته تسلیت وړاندي کړی او ورسره یې له نوي مشر امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) سره د علماء کرامو په نمائندګي د بیعت اعلان وکړ

## دکابل جلال آباد لویي لاري د مسؤل مولوي عبدالله دډاډ ګېرني او بیعت پیغام

له پلازمېني تر جلال آباد پوري دلویې لاري مسؤل مولوي عبدالله دمرحوم عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد(رحمه الله) کورنۍ او ټولومجاهدینو ته تسلیت وړاندي کړ ، او ورسره یې له نوي مشر امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) سره یې بیعت وکړ

## د لغمان ولایت مرستیال والي د تسلیت او بیعت پیغام

دافغانستان اسلامي امارت دبغلان ولایت مرستیال والي ملا محمد نظر صاحب دمرحوم عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد(رحمة الله علیه) کورنۍ او مجاهدینو ته دتعزیت او ډاډ مراتب وړاندي کوي او ترڅنګ يې له امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) سره د نوي مشر په حیث بیعت وکړ

## د زابل ولایت دنظامي کمیسیون دمشر دتسلیت او بیعت پیغام

د افغانستان اسلامي امارت دزابل ولایت دنظامي کمیسیون مشر مولوي محمد فرید صاحب دعالیقدرامیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد(رحمة الله علیه) دوفات په مناسبت دهغه کورنۍ او ټولومجاهدینو ته تسلیت وړاندي کړ او له نوي مشر امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) سره يې دبیعت اعلان وکړ

## دفراه ولایت ولایتي کمیسیون مشر حاجي ملا عبدالسلام اخند دتعزیت او بیعت پیغام

دفراه ولایت ولایتي کمیسیون مشر حاجي ملا عبدالسلام اخند دیوه را لیږلي پیغام په ترڅ کې دافغانستان داسلامي امارت دمرحوم مشر امیرالمؤمنین دمړیني له امله داسلامي امارت نوي مشرتابه او دامیرالمؤمنین کورنۍ ته تعزیت وړاندي کړی دی

دوی دامیر المؤمنین مړینه دامت په سطحه یوه ستره ضائعه بللې داسلامي امارت مشرتابه او دامیرالمؤمنین کورنۍ ته يې تسلیت ویلی دی

دوی دخپلو ملګرو په استازیتوب داسلامي امارت له نوي مشرتابه سره دبیعت تر څنګ دژوند تر پایه دخدمت کولو ډاډ ور کړی دی

## د قاري صاحب احمدالله ورور ملا محمد نبي مجروح دتعزیت او بیعت پیغام

دافغانستان داسلامي امارت دشرعي امر علیقدرامرالمؤمنین رحمة الله درني کورني اود افغانستان د اسلامي امارت نوی زعیم ته دقاري صاحب احمدالله دي ورور ملا محمد نبي مجروح دي تعزيې او خوا خوږۍ پیغام

دافغانستان داسلامي امارت د جهادي کارون او قا فلي ستر مشر علیقدر أمیرالمؤمنین (رحمت الله)دوفات تعزیت دده درني جهادي کورنۍ او دهغه رحمه الله ځایناستي محترم منصور صاحب او ټولو مجاهدینو ته وړاندي کوم ، الله جل جلاله دي دهغه رحمه الله ټول جهادي خدمتونه قبول او دهغه د لاري ملګرو ته جمیل صبر ورکړي.

زه محمد نبي مجروح د قاري صاحب احمدالله د ټولو مجاهدینو په نمایندګي دعلیقدرامیرالمؤمنین پر ځای نوي منتخب زعیم محترم ملا اختر محمد منصور حفظه الله ته خپل بیعت او أطاعت اعلانوم

## داسلامی امارت دترانسپورت دپخوانی وزیر مرحوم الحاج ملاحبیب الله آخند دکورنۍ اوملګرو دتعزیت اوبیعت پیغام

دعالیقدرامیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهدرحمه الله دوفات له امله دنوموړي کورنۍ اوټولو مسلمانانوته تسلیت وړاندي کوو داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي زعیم قابل قدرمحترم ملااخترمحمد منصور صاحب حفظه الله سره بیعت اعلانوو دالله تعالی له درباره ورته توفیق غواړو

## داسلامي امارت دحج او اوقافو دوزات پخواني مرستیال مولوي محمد مسلم حقاني دتعزیت او بیعت پیغام

محترم مولوي محمد مسلم حقاني په ږغ کې الاماره ویب پاڼي ته دتعزیت او له نوي امیر صاحب ملا اخترمحمد

منصورسره دبیعت پیغام را لیږ لی دعالیقدرامیرالمؤمنین رحمه الله کورني او ټولو مجاهدینو ته یې دتعزیت اوتسلیت ترویلو وروسته له امیرالمؤمنین ملا اخترمحمدمنصور سره بیعت کړی او ټول مجاهدین او عام مسلمانان یي یو والي اوایثار ته را بللي او هیله یې کړي چي الله تعالی دي ټول مسلما نان په منصور صاحب باندي دا سي را ټول کړي لکه په مرحوم ملا صاحب مبارک باندي چي را ټول شوي وو

## دکابل د پخواني والي مولوي محمد داوود جلالي دتعزیت او بیعت پیغام

د افغانستان اسلامي امارت دکابل ولایت پخواني والي مولوي محمد داوود (جلالي) په خپل یوه ږغیز پیغام کي دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله درنې کورنۍ او ملګرو ته دهغه و فات له امله دتعزیت مراتب وړاندي کړي او له نوي ټاکل شوي امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور حفظه الله سره یې دبیعت اعلان کړی

## دهیواد د نامتو عالم شیخ الحدیث مولوي سلطان محمد ثاقب دبیعت او تعزیت پیغام

د ننګرهار ولایت جید عالم شیخ الحدیث مولوي سلطان محمد(ثاقب) په یوه ږغیز پیغا م کي دمرحوم عالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد کورنۍ ،مجاهدینواو عام ولس ته د مرحوم امیر دوفات له امله تسلیت وړاندي کړی او د الله عزوجل له درباره یې دجمیل صبر غوښتنه کړې ،د نوي ټاکل شوي امیر ملااخترمحمد(منصور)حفظه الله سره یې بیعت کړی دی او په ټولو شرعي امورو کي ورته دموفقیت دعاء کوي

## دهیواد د نومیالي لیکوال،مورخ اوعالم استاد زاهدي احمدزي دتعزیت او بیعت پیغام

د هیواد نوموتی لیکوال ،مورخ او علمي شخصیت استاد زاهدي احمدزی په یوه ږغیز پیغام کي دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات له امله دهغه کورنۍ ،ملګرو او ټول مسلمه امت ته دتعزیت او غمرازۍ مراتب وړاندي کوي اود نوي ټاکل شوي امیرالمؤمنین ملااخترمحمد (منصور)حفظه الله سره دبیعت اعلان کوي.

## داستشهادي ګروفونو قومندان قاري عبدالرؤف (ذاکر)دتعزیت او بیعت پیغام

دافغانستان اسلامي امارت د استشهادي ګروفونو تګړه پوځي قومندان قاري عبدالرؤف(ذاکر)دیوه رالیږل شوي پیغام په ترځ کي دعالیقدرامیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله کورنۍ،هم سنګرو او عامو افغانانو ته دمرحوم امیر د وفات له امله دتعزیت مراتب وړاندي کوي او د اسلامي امارت له نوي ټاکل زعیم ملااخترمحمد(منصور)حفظه الله سره دبیعت اعلان کوي او ډاډ څرګندوي چي په خوښي او ناخوښي به دده ټولو شرعي اوامرو ته لبیک وایي .

## دروزګان ولایت دجلب اوجذب کمیسیون درئیس، معاونینو اونمایندګانو دتعزیت اوبیعت پیغام

دروزګان ولایت دجلب اوجذب کمیسیون عمومي رئیس ملاسخي داد سعادت ، اودهغه معاونین هریو مولوي عصمت الله عاصم اوملاحمدلله په همدي ولایت کې دجلب اوجذب کمیسیون دټولو نمایندګانو په نمایندګي داسلامي امارت دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله درنې کورنۍ اوټولو مجاهدینوته دامیرالمؤمنین رحمه الله دوفات له امله دتعزیت مراتب وړاندي کړل

وروسته نومورودخپلوټولو همکارانوپه نمایندګي داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امیر محترم ملا اخترمحمدمنصور حفظه الله سره بیعت ترسره کړ او زیاته یې کړه لکه څرنګه چې مو له مرحوم امیرالمؤمنین رحمه الله سره بیعت کړی ؤ همداشان موله منصورصاحب حفظه الله سره بیعت دی اوپه ټولو شرعي امورو کې به یې بشپړملاتړکوو

## دهجرت په ديار کي دمرحوم اميرالمومنين دتعزيت او له نوي امير منصور صاحب سره دبيعت په مناسبت دزرگونوعلما اومخورو او عوامو غونډه وشوه

د بلوچستان ايالت د مرکز کوټي ښار په هزار گنجي سيمه کي په زرهاوو عامو مسلمانانو اودهيواد مشهورو علماء کرامو دمرحوم امير المؤمنين دتعزيت او له نوي امير سره دبيعت په مناسبت يوه لويه غونډه وکړه ،دمشهورشيخ الحديث اودامارت په مهال دستري محکمې دريس مرحوم مولوي عنايت الله غبرگي مشرصاحبزاده شيخ الحديث خليفه مولوي محمدعمرجان اخنزاده صاحب، استادالعلماء اودغزني دمرافعه محکمي مفتي شيخ الحديث مولوي عبدالله گل صاحب اومشهورعالم اومقررمولوي احسان الله صاحب په گډون په زرهاوو عامو مسلمانانو په دغه غونډه کي شرکت کړی ؤ ،يادشوو علماء کرامو اوعامو مسلمانانود مرحوم اميرالمومنين روح ته دعاء وکړه اوله نوي اميرالمومنين منصور صاحب سره يې بيعت وکړ .

## د امير المؤمنين رحمه الله د خاص دفتر دمخابراتو دڅانگي دمشر- او ملگرو دتعزيت اوبيعت پيغام

دامير المؤمنين رحمه الله د خاص دفتر د مخابراتو دڅانگي مسؤل ملا عبدالقيوم زاهد او ملا نور گل اخنددخپلو ټولو ملگرو په نمايندگي د مرحوم امير المؤمنين دوفات له امله دنومورړي کورنۍ اوټولو مسلمانانو ته دتسليت مراتب وړاندي کوي،دوی وايې چي موږ داسلامي امارت د نوي امير منصو رصاحب سره بيعت اعلا نوو او دپوره اطاعت او همکارۍ وعده ورسره کوو.

والسلام ملا عبدالقيوم زاهددنصرت په نامه د اروابنادمشر ملا صاحب د دفتر دمخابراتو مسؤل

## د بنديانو چارو کمېسيون د رئيس، مرکزي اعضاوو او ولايتي مسئولينو د تعزيت او بيعت پيغام

نحمده و نصلي على رسوله الكريم امابعد !

د اسلامي امارت د بنديانو د تنظيم او خلاصون د چارو کمېسيون عمومي مسئول ، مرستيال ، اداري او مالي مسئول ، د عمومي ارتباطاتو مسئول ، د تحقيق او تفتيش د څانگي مسئول او ټول ولايتي مسئولين لومړی د اسلامي امارت د مؤسس او د اسلامي نړۍ د سترشخصيت عاليقدر اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات له امله ټول اسلامي امت ، د افغانستان اسلامي امارت او په ځانگړي ډول د مرحوم اميرالمؤمنين رحمه الله درنې کورنۍ ته د تسليت او تعزيت مراتب وړاندي کوي ، أميرالمومنين رحمه الله واقعاً د مسلمانانو په غم غمجمن مشر وو او ټول عمر يې د اعلاء کلمة الله په لاره کي ډول ډول تکاليف او ستړياوي وگاللې ، له الله تعالي څخه غواړو چي مرحوم أميرالمؤمنين رحمه الله ته د امت د خدمت په لاره کي د ټولو ستړياوو عوضونه په جنت کي ورکړي .

او بيا د اسلامي امارت د نوي زعيم محترم الحاج ملااخترمحمد منصور صاحب حفظه الله سره خپل بيعت اعلانوو او ژمنه کوو چي د محترم امير حفظه الله هر شرعي امر به د يُسر او عُسر او د خوښۍ او ناخوښۍ په ټولو صورتونو کي عملي کوو ، الله تعالي دي د اسلامي امارت د زعيم حفظه الله په قيادت کي د ښو خدمتونو توفيق رانصيب کړي . آمين

## د نظامي کميسيون غړي او حلقوي مسؤل قاري سيف الله (فاتح)دتعزيت او بيعت پيغام

دافغانستان داسلامي امارت دنظامي کميسيون غړی او دحلقي مسؤل قاري سيف الله (فاتح) دخپلو ټولو ملگرو په نمائندگي دمرحوم عاليقدراميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله کورنۍ ته دتسليت مراتب وړاندي کړل او

داسلامي امارت د زعامت لپاره دټاکل شوي اميرالمؤمنين ملا اختر محمد (منصور)حفظه الله سره دبيعت اعلان وکړ.

## د هرات اوغزني دپخواني والي شهيد ملا يار محمد اخند دکورنۍ او ملګرو دتسليت اوبيعت اعلان

دهرات او فراه ولايتونو دنظامي کميسيون د غړي ا وشهيد ملا يار محمد اخند د ملګرو مشر ـ ملا محمد يونس اخند د خپلو ټولو ملګرو او دشهيد ملا يار محمد اخند دکورنۍ په نمايندګي ټولو مسلمانانوته داmير المؤمنين رحمه الله دوفات له امله دتعزيت وړاندي کړ ،اواداسلامي امارت له زعيم ملا اختر محمد منصور سره په سمع او طاعت سره بيعت اعلان کړ .

## د مولوي داود جلالي او ياسين اغا دتعزيت اوبيعت پيغام

دلوګر ولايت دسوونو مجاهدينو مشر ـ مولوي داود جلالي دمرحوم اميرالمومنين روح ته ددعا او درناوي ترڅنګ داسلامي امارت له نوي زعيم ملا اخترمحمد منصور سره دخپل ځان او سوونو مجاهدينوپه استازيتوب بيعت اعلان کړ،همدا راز دمرکزي نظامي کميسون د شمال د٧ولاياتودحلقې مسول ياسين اغادمرحوم اميرالمومنين دوفات تعزيت داسلامي امارت تولو مجاهدينو اودمرحوم درنۍ کورنۍ ته وړاندي کړ، اودنوي امير ملااخترمحمدمنصورصاحب سره يې بيعت اعلان کړ .

## د شهداء، يتيمانو اومعيوبينو د سميزو چارو کميسيون دتعزيت او بيعت اعلان

د شهداء، يتيمانو اومعيوبينو د سميزو چارو کميسيون مرکزی اعضاؤاود ولايتی نمايندګانو دمرحوم اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات له امله د ټولو مسلمانانو، مجاهدينو او بالخصوص د ملا صاحب رحمه الله کورنۍ ته دزړه له تل نه تسليت وړاندی کوي .

زه د شهداء، يتيمانواومعيوبينو دسميزو چارو دکميسيون مسئول په حيث د ټولو مرکزی اعضاؤ، ولايتی نمايندګانو په نمايندګي لکه څنګه چې مو د مخکنی مرحوم امير رح سره بيعت کړی ؤهمدا شان مود اوسني نوی امير ملا اختر محمد منصور بيعت دی او په ټولو شرعي چارو کي يې بشپړ ملا تړ کوو.

د شهداءاو يتيمانو دسميزو چارو مسئول مولوی عبد الحکيم حقاني

## بادغيس : قادس ديوې پراخي غونډي په ترځ کي دفاتحې اوبيعت مراسم ترسره شول

دبادغيس ولايت له قادس ولسوالۍ نه په رارسيدلي خبرکي مسؤول مجاهدين وايي چي : نن سهار ٨ بجې ديادي ولسوالۍ په مربوطاتوکي دهمدي ولسوالۍ دولسوال محترم ملا محمدعيسی په سرپرستي ديادي ولسوالۍ اوشاوخوا سيمو په سلهاؤ علماء کرامو، مجاهدينو ، قومي مشرانو او عامه مسلمانانو ديوې پراخي غونډي په ترځ کې د عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله روح ته دثواب بخښلو په موخه دقرآن کريم ختم اودفاتحې مراسم ترسره شول

غونډه چې دسهار په ٨ بجوپيل شوه دغرمي تر ١١ بجوپوري يې دوام وکړ

دغونډي په پای کې ټولو ګډونوالو په يوه خوله داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي زعيم ملااخترمحمدمنصور حفظه الله سره بيعت او داسلامي امارت دکاميابي لپاره يې دعاګاني وکړي

## دملامشرمرحوم دمحاذ مسؤول او دعالي کميسيون دغړي محترم ملاعبدالسلام (حيدر) تعزيت اوبيعت

دشهيد ملامشر ـ اخند دمحاذ مسؤول اودبادغيس اوفارياب دعالي کميسيون غړی ملاعبدالسلام (حيدر)

د اميرالمؤمنين رحمه الله کورنۍ اوټولو مسلمانانوته تعزيت وايم،

زه دخپلو ټولو ملګرو چې په ۲۹ دلګيو کې دکندهار، روزګان : دايکندي ، فارياب اوبادغيس کې په جهاد بوخت دي او همداراز دخپلې سيمي دعلماء کرامو، قومي مشرانو اوعام ولس چې ۱۰۰۰۰الس زره کورنۍ يې په بادغيس او فارياب کې او ۷۰۰کورنۍ دهجرت په ديار مسلم باغ کمپ کې ميشت دی په نمايندګي داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امير ملا اخترمحمد منصور حفظه الله سره بيعت اعلانوم، موږ خپل نوی امير منصور صاحب ته ډاډ ورکووچې لکه څنګه چې اميرالمؤمنين رحمه الله پرتا اعتماد کړی ؤ ، زموږ هم پرتاسو اعتماد دی اوستاسو ترامرلاندې به جهاد ته ادامه ورکوو.

## دملکي تلفاتو دمخنيوي اداري دمعاون اودهمدې ادارې دټولوکارمندانو دتسليت اوبيعت پيغام

داسلامي امارت دملکي تلفاتو دمخنيوي ادارې دمعاون منيب مولوي صيب او دهمدې ادارې ټول کارمندان دعاليقدر اميرالمؤمنين ملا محمدعمر مجاهد رحمه الله دوفات په اړه دنوموړي کورنۍ اوټولو مجاهدينوته دغمرازي ، فاتحې اوتسليت مراتب وړاندې کوو الله تعالی دې نوموړي ته جنت الفردوس ورپه برخه کړي

ورپسې داسلامي امارت داهل الحل والعقد له لوري دټاکل شوي امير محترم ملااخترمحمدمنصور حفظه الله سره دبيعت اعلان کؤو اوترخپله وسه به يې په ټولو شرعي امورکې اطاعت کوو

## دکندهارولايت دپخواني جهادي مسؤول ملامحمدعيسی اخند دتعزيت اوبيعت پيغام

دکندهارولايت پخواني جهادي مسؤول محترم ملا محمد عيسی اخند: دعاليقدر اميرالمؤمنين ملا محمدعمر مجاهد رحمه الله د وفات له امله دنوموړي کورنۍ اوټولو مسلمانانوته تسليت وړاندې کوم

داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي زعيم عاليقدر محترم ملااخترمحمدمنصور صاحب حفظه الله سره بيعت اعلانوم او دنوموړي په قيادت کې به دجهاد سپيڅلي فريضې ته ادامه ورکوم . ان شاء الله العزيز

## په قطر کې داسلامي امارت د سياسي دفتر دغړو لخوا دتعزيت پيغام

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلاة والسلام علی من لا نبی بعده. اما بعد،

قال الله تعالی: کل نفس ذائقة الموت. الآية

زه او د افغانستان د اسلامي امارت سياسي دفتر ټول اعضاء د عاليقدر امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی د مړيني له امله د هغه مجاهدې کورنۍ، د اسلامي امارت مشرتابه، ټولو مشرانو، اعضاوو، مجاهدينو، افغان مجاهد ولس او اسلامي امت ته د زړه له کومې تسليت وايو، الله تعالی دې هغوی ته مغفرت وکړي، او جنت الفردوس دې نصيب کړي.

د عاليقدر امير المومنين رحمه الله مړينه د اسلامي امارت، د افغانستان مجاهد ولس، او اسلامي امت لپاره يوه ستره او نه جبيره کيدونکې ضايعه بولو، الله تعالی دې ددې سترې غميزې د زغملو لپاره زمونږ ټولو په تيره بيا د هغه کورنۍ ته صبر جميل ورکړي.

د اسلام په لاره کې د هغه ژوند او هلې ځلې د اسلام او افغانستان د تاريخ وياړمن او زرين باب دی.

الله تبارک وتعالی ته لاس په دعا يو چې د هغه لارې د پاللو، همدا شان د شهيدانو د قربانيو او مجاهدينو د سترياوو د ثمراتو د حاصلولو په لاره کې مو توفيق نصيب کړي.

ان شاء الله په دې لاره کې به د پخوا په شان د خپلو اسلامي او ملي مصالحو په پام کې نيولو سره خپلو هلو ځلو ته دوام ورکوو. والسلام، شير محمد عباس ستانکزی.

د افغانستان د اسلامي امارت د سياسي دفتر معاون

## په قطر کې داسلامي امارت دسیاسیدفترو غړو لخوا دبیعت پیغام

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم. اما بعد:

قال الله تعالی: واعتصموا بحبل الله جمیعا ولاتفرقوا. الآیة

د افغانستان د اسلامي امارت د مشرتابه محترم مقام ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.

زه او د سیاسي دفتر اعضاء د اسلامي امارت د نوي زعیم محترم ملا اختر محمد منصور سره بیعت کوو، او د اسلامي شریعت په چوکاټ کې په ټولو امورو کې تر خپله وسه اطاعت کوو، او د حق پالني په لاره کې له خپله طرفه اطمینان ورکوو.

له الله جل جلاله نه غواړو چې د هیواد د خپلواکۍ د ګټلو او ساتلو او د اسلامي نظام د قیام د لوړ هدف لپاره له مونږ ټولو سره نصرت او مرسته وکړي. امین ثم امین

شیر محمد عباس ستانکزی

د افغانستان د اسلامي امارت سیاسي دفتر معاون

## زابـــل : شـــملزوکې دشهیدملامحمدحســین مستسعد ملګرودپراخي غونډي په تـرځ کـې بیعـت ترسره کړ

دزابـل ولایـت لـه شملزو ولسـوالۍ نـه پـه رارسـیدلي خبرکې مسؤول مجاهدین وایي چې : نن سهار دیادي ولسوالۍ په مربوطاتوکې دالحاج شهید ملامحمدحسـین مستسـعد تر ۱۰۰ تنـه زیـاتو مجاهـدینو دیـوې پراخـي غونـډې پـه تـرځ کـې دعالیقـدرامیرالمؤمنین ملامحمـدعمر مجاهـد رحمـه الله لپاره دقرآن کریم ختم او دفاتحې مراسم ترسره کړل

وروسته ټولوپه یوه خوله داسلامي امارت داهـل الحـل والعقـــد شـــورى لـــه لـــوري دنـــوي ټاکـــل شـــوي امیر ملااخترمحمدمنصور حفظه الله سره بیعت وکړ

## د جهــادي شخصـیت حــاجي مولـوي جنـت ګـل دتسلیت او بیعت اعلان

حاجي جنت ګل صاحب د عالیقدر امیرالمـؤمنین رحمـه الله روح ت دد عاء ترڅنګ دمرحوم کورنۍ اوټولو مجاهدینوته تسـلیت وړانـدي کوي،تـه ښښـنه او مغفـرت وکـړي او د جنـت عالیه درجات يې نصیب کړي.

جنت ګل حـاجي وایـې چـې د خوښـۍ ځـای دی چـې د عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله ځای خـالي پـاتې نشـو او هغـه چاته له ده رحمه الله نه پاتې د اسلامي امارت زعامت وسپارل شو په چا باندې چې ده رحمه الله په خپل ژونـد کـې اعـتماد او باور کړی ؤ.

داد اهل الحل و العقد شوری له لوري د اسلامي امـارت نـوی امـیر منصـور صـاحب وټاکـل شـو نـو زه هـم پـه سـمع او طاعت باندې بیعت ورسره اعلانوم.

ان شـاءالله د اسـلامي شریعـت سره برابـر هـر امـر بـه يې په سر اوسترګو منم او د ده منصور صـاحب حفظـه الله پـه قیادت کې به د صـلیبیانو او منافقـانو پـه ضـد خپـل سـپیڅلي جهاد او مبارزې ته دوام ورکوم.

الحاج مولوي جنت ګل

## په خیبر پښـتونخوا کي د۳۰ مدرسـو اسـتادانو، مهتمیمینو، اوعلـماء کرامـو داسـلامي امـارت لـه زعیم سره بیعت وکړ

دعیني شاهدانو په وینا نن دخیبر پښـتونخوا ایالـت لـه کوهـاټ څخـه تـر پـاړه چنـار پـورې د دوه دیـرش مدرسـو ، مهتمیمینو ، استاذانو او ټولـو جیـدو علـماء کرامـو ، شـیوخو،د امارت مسؤلینو او مجاهدینو په درسمند کمپ کې په یوه لویه غونـډه کـې داسلامي امـارت لـه نـوي امیـر مـلا اخـتر محمـد منصور صاحب خپل بیعت اعـلان کـړ، دوی داټاکنـه یـو غـوره انتخاب وباله او زیاته يې کـړه چـې منصـور صـاحب د مرحـوم امیر المؤمنین رحمه الله له خـوا خپـل نائـب ټاکـل شـوی ؤ، نـو لهذا دنوموړي غـوراوی ډیـر ښـه او پرځـای انتخـاب دی، الله

تعــالی دي پــه ټولــوشرعي امــورو کــي موفــق لــري او مور ونوموړي ته دخپل حمایت ډاډ ورکوو.

## دزابل ولایت د ۱۲ ولسوالیو نظامي مسؤلینو اودولایتي کمیسیون رئـیس لـه نـوي ټاکـل شـوي امیرسره بیعت ترسره کړ

دزابل ولایت د مرکز او ۱۲ ولسوالیو نظامي مسؤلینو او دهمدي ولایت د دولایتي کمیسیون رئیس محترم مولوي عطاء الله فرید صاحب دیوې ستري غونډې په ترڅ کې چې دګڼ شمېر مجاهدینو علماؤ په ګډون پکې دکمیسیونونو ټول غړي هم موجود ؤ داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي زعیم محترم ملااخترمحمدمنصور حفظه الله سره خپل بیعت اعلان کړ

ټولــو پــه یــوه خولــه داهــل الحــل والعقــد لــه لوري دمنصورصاحب حفظه الله ټاکنه ومنله او دنوموړي ترقیادت لاندي یې دخپل جهادي خدمت ژمنه وکړه.

دیـادوني ده چـې لـه تېـرو ۲ ورځـو راهیسې دزابـل ولایت دمرکز په شمول په ټولو ولسوالیو کې دعلماء کرامو، مجاهدینو، قومي مشرانو اوعامه مسلمانانوله لوري محترم امیرالمـؤمنین رحمـه الله لپـاره دقـرآن کـریم ختمونـه ، دعاګاني او له نوي امیر سره بیعتونه ترسره شول

## دزابــل والي مرســتیال نقشــبندي صــاحب اوقومندان بشیر هم دټولو ملګروپــه شــمول بیعــت وکړ

دزابل ولایت دوالي مرستیال محترم نقشبندي صاحب او ورسره په لسهاؤ جهادي قومندانانو دیوې پرتمیني غونډې پـه تـرڅ کـې داهـل الحـل والعقـد دپریکـړې پـه اسـاس ملااخترمحمد منصور حفظه الله داسلامي امـارت دنـوي زعیم په توګه ومانه او دنوموړي ترقیادت لاندي یې دخپل جهادي خدمت جاري ساتلو ژمنه وکړه.

دیادوني ده چې پـرون ورځ دشـهید ملامحمـدګل نیـازي ورور اوپه سیمه کې غښتلي قومنـدان حاجي بشیر صاحب هم دخپلو ټولو مجاهدو ملګروپـه ګـډون لـه نـوي ټاکـل شـوي امیرمحترم ملااخترمحمدمنصور صاحب سره بیعت ترسره کړ.

## دشــهید الحــاج مولــوي اخترمحمــدعثماني دکورنۍ اوملګرولخوا دتعزیت اوبیعت اعلان

دکندهارولایت دقول اردو پخوانی قومندان او داسلامي امارت درهبري شورى دغړي شهید الحاج مولوي اخترمحمد عــثماني (رحمــه الله ) ملګــري اوکــورنۍ دامیرالمــؤمنین ملامحمدعمرمجاهد(رحمه الله ) کورنۍ تـه ، داسلامي امـارت مجاهــدینو اوعامــه مســلمانانوته دامیرالمــؤمنین رحمــه الله دوفات په اړه تسلیت اوتعزیت وړاندي کـوو لـه الله رب العزة څخه ورته جنت الفردوس غواړو

مور د اهل الحل والعقد له لوري داسلامي امارت لپـاره دټاکل شوي امیـر محـترم مـلا اخترمحمدمنصـور حفظـه الله سره بیعت کوو او کلک هوډ مودی چې دنوموړي پـه قیـادت کې خپل ځان له هیڅ ډول خدمت څخه ونه سپموو

والسـلام ، دشـهید مولـوي اخترمحمـدعثماني رحمـه الله ورور حاجي ابوالوفا ء عثماني

## دامیرالمــؤمنین دپخــواني نائــب شــهید ملاعبیدالله اخند دکورنۍ د تعزیت اوبیعت لیک

دامیرالمــؤمنین ملامحمــدعمر مجاهــد( رحمــه الله ) دپخواني نائـب شـهید الحـاج ملاعبیـدالله اخند(رحمـه الله ) دکورنۍ له لوري دامیرالمؤمنین - رحمـه الله رحمـة واسـعة - درنــې کــورنۍ تــه ، داســلامي امــارت مجاهــدینواوټولو مسلمانانوته دامیرالمؤمنین دوفات په هکله تسلیت وړانـدي کوي.

مـور دامیرالمـؤمنین (رحمـه الله ) دفـات خواشـینونکي فراق کې خپل ځان له ټولو مسلمانانوسره شریک ګڼو

داچــي محــترم منصــور صــاحب د اهــل الحــل والعقــد شورى داسلامي امارت لپاره زعیم ونوماوه مـور ورسره بیعـت کوو اووعده کوو چې دنوموړي په مشري کې به خپـل ځـان لـه هیڅ ډول خدمت څخه ونه سپموو

والسلام داميرالمؤمنين رحمه الله دشهيد نائب الحاج ملاعبيدالله اخند وروڼه حاجي ملاعبدالهادي اوحاجي فضلي

**دننگرهار ولایت سوونو ، علمای کرامو ، مشایخو ، مجاهدینو او عاموومسلمانانو ،دمرحوم امیرالمومنین روح ته ددعا ترڅنګ له نوي امیرسره بیعت اعلان کړ**

دراپورونو ترمخه ، نن ددوشنبي په ورځ دهجرت په دیار دبوړډ ناصرباغ ، دحضرت یاسر په جامع جومات کې دمرحوم عالیقدر امیرالمومنین ملامحمد عمر مجاهد رح پاک روح ته ددعا اوفاتحي ستره غونډه دننګرهار اونورو ولایتونو دسوونو علمای کرامو، مشایخو ، مجاهدینو اوعامو مسلمانانو په ګډون جوړه اوترسره شوه ، دفاتحي په دغو مراسمو کې دعظیم الشان قران په ختمونو اوتلاوتونو سربیره دهیواد نومیالي علمي اوروحاني شخصیت محترم شیخ القران والحدیث مولوي عبدالرشیدشنواري، محترم شیخ القران والحدیث مولوي محمداسماعیل رحماني ، محترم شیخ القران والحدیث مولوي سلطان محمد ثاقب په خپل وار ارزښتناکي خبري وکړي ، دمرحوم عالیقدر امیرالمومنین دوفات دستري ضایعي او دهغه دستر و دیني اوجهادي خدمتونو باندي یې رڼاوي واچولي ، وي ویل ، مرحوم ملامحمد عمر مجاهد په خپل وخت کې اسلامي امت ته داسلامي ویښتابه او خپلواکی ګټلو جهادي روح ورکړ او نسلونو ته یې داستقامت ، استقلال او اسلامي غرور دساتلو درس پرېښود ، دغه را ز محترمو شیوخو داسلامي امارت لپآره دنوي امیر اوجانشین محترم ملااخترمحمد منصور ټاکل کیدل وستایل ، دمجلس له برخوالو یې وغوښتل چې په همدې مجلس کې دبیعت شرعي مکلفیت ادا او لاسونه پورته کړي ، چې دبرخوا له لوري په ډیر اخلاص او جذباتي انداز له نوي امیرسره خپل بیعتونه اعلان او داسلامي امارت دجهادي صف دټينګښت لپاره یې خپل هرراز چمتوالي څرکندکړ

**دمحترم الحاج ملا محمد عباس اخند تعزیت او بیعت لیک**

زه دعالیقدر امیرالمؤمنین درني کورنۍ اوټول اسلامي امت ته دنوموړي دوفات له امله دتعزیت او تسلیت مراتب وړاندي کوم اوټولو ته له الله تعالی څخه دجمیل صبراوعظیم اجرغوښتنه کوم همدارنګه له نوي امیر محترم ملا اخترمحمد منصورصاحب سره دبیعت اعلان کوم اوپه ټولو شرعي اومورو کې به یې اطاعت کوم .والسلام

داسلامي امارت دعامي رو غتیاوزیر او بیا دصحت دکمیسیون پخوانی مسئول ملا محمد عباس اخند

**دلسو ولایتونو د محاکمو رئیسانو اود څلور ولایتونو والي صاحبانو د نوي امیر (منصور صاحب حفظه الله) سره بیعت و کړ**

دیوي لویې ناستي په ترځ کي د هیواد دلسو ولایتونو د محاکمو رئیسانو، او دڅلورو ولایتونو لپاره داسلامي امارت جهادي مسولینو( والیانو) داسلامي امارت دمرستیال (شیخ الحدیث والتفسیر مولوي هیبت الله اخند زاده صاحب) په لاس د نوي ټاکل شوي امیر محترم ملا اختر محمد منصور صاحب سره بیعت وکړ.

د زابل ولایت والي مطیع مولوي صاحب ، د دایکنډي والي ملا سلیمان اغا، د ارزګان والي حاجي محمد یوسف امین، او د غزني والي مولوي محمد قاسم صاحب ، همداراز د لسو ولایتونو د مرافعې محاکمو رئیسانو، مجاهدینو اومسؤلینو دمحترم اخند زاده صاحب په لا س له نوي امیر سره بیعت وکړ.

دوی خوښي څرګنده کړه چي داهل حل والعقد شوری د پریکړې په اسا س محترم ملا اختر محمد منصور صاحب داسلامي امارت د نوي زعیم په حیث ټاکل شوی او ژمنه یې وکړه چي د نوموړي امیر تر قیادت لاندي به خپل جهاد او خدمت ته دوام ورکوي .

**په ننگرهار کې د اسلامي امارت د کانال برحال مسئول او غښتلي قومندان مولوي عبدالغفور تعزيت او بيعت**

بسم الله الرحمن الرحيم

د نورو ټولو مسلمانانو او مجاهدينو په څېر زموږ زړه هم د اميرالمؤمنين د وفات په خبر وخوږېد. رښتينى مشر، و. د وفاء او جرئت څښتن و. د هغه درنې كورنۍ، ټولو مجاهدينو او ټولو مسلمانانو ته يې د وفات په اړه تعزيت او تسليت وړاندې كوم. الله جل جلاله دې پرې رحم وكړي او هغه كوښښونه چې د اسلامي نظام د قيام لپاره يې كړي، الله جل جلاله دې ترې قبول كړي.

همدا ډول نوي اميرالمؤمنين ملا اخترمحمد منصور سره د خپلې كورنۍ، دلګۍ مشرانو او سرګروپانو په استازيتوب على السمع والطاعة بيعت اعلانوم. دعاء كوم چې الله جل جلاله اميرالمؤمنين او نائبينو ته يې - يو شيخ الحديث هبة الله اخوندزاده او ملا سراج الدين حقاني - د شريعت او د جهاد په لار ثبات او استقامت په برخه كړي. امين

په درنښت

**هرات کې هم په پراخه کچه دفاتحې او نوي امير سره دبيعت مراسم ترسره شول**

دهرات ولايت له مركز هرات ښار نه دالاماره ويب پاڼې مطبوعاتي نماينده خبرراكوي چې : په تېرو ۲ ورځو كې دهرات ولايت دمركز هرات ښار ، كشك كهنه ، ګلران ، رباط سنګي ، شينډنډ اونورو ولسواليو اوسيموكې په پراخه كچه په مساجدو اودغونډو په ترڅ كې دعلماء كرامو، مشائخو، روحانيونو، مجاهدينو اوعامه مسلمانانوله لوري دعاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد(رحمه الله ) لپاره دقرآن كريم دختم ، فاتحې او له نوي ټاكل شوي امير محترم ملااخترمحمدمنصور صاحب حفظه الله سره دبيعت دتجديد مراسم ترسره شول

دغونډو په مهال علماء كرامو ديويشتمي پيړۍ داتل اودجهاد مجدد اميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله په ژوند اودهغه په كارنامو رڼا واچوله هغه ته يې دمغفرت اونوي ټاكل شوي امير ته داستحكام ، اوثبات لپاره دعاګاني وكړي

**دروزګان والي الحاج ملامحمديوسف امين دمجاهد او غيور ملت په نمايندګي خپل بيعت اعلان کړ**

له روزګان ولايت څخه په رارسيدلي خبركې مسؤول مجاهدين وايې چې : تېره ورځ دروزګان ولايت دمركز ترينكوټ په شمول ددي ولايت په ټولو ولسواليو كې دعلماء كرامو، مشايخو، روحانيونو ، مجاهدينو اوعامه مسلمانانوله لوري په پراخه كچه دعاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد( رحمه الله ) لپاره ختمونه دعاګاني او له نوي امير منصور صاحب حفظه الله سره دبيعت مراسم ترسره شول

نن سهار هم ددي ولايت دمركز اوولسواليو په مربوطاتوكې دقرآن كريم ختمونه اودعاګاني ترسره شوي او دهمدي ولايت لپاره داسلامي امارت والي محترم الحاج ملامحمديوسف أمين صاحب دروزګان ولايت دغيورو قهرمانو اومجاهدپرور ملت ، مجاهدينو اوعلماء كرامو په نمايندګي نن سهار له نوي ټاكل شوي امير ملااخترمحمد منصور حفظه الله سره دبيعت اعلان وكړ

**د عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله د وفات په مناسبت د مشهور جهادي اوعلمي شخصيت مولوي رفيع الله مؤذن د کورنۍ لخوا د تسليت پيغام، او د اميرالمومنين ملا اختر محمد منصور سره د بيعت تجديد**

د مرحوم اميرالمؤمنين وفات د ټولې اسلامي نړۍ، اسلامي امارت، او افغان جهادي غيرتمند اولس لپاره ستره ضايعه ده.

د مرحوم مؤذن صاحب کورنۍ پدې ستر نه هېرېدونکي غـم کـې د اميرالمـومنين لـه کـورنۍ، اسلامي امـارت او ټـول مسلمه امت سره ځان شريک بولي.

د مرحوم مولوي رفيع الله مؤذن کـورنۍ د اميرالمـؤمنين په توګه د ملا اختر محمـد منصـور صـاحب ټاکـل يـو پـر ځـاى اسلامي او شرعـي عمـل بـولي، او د زړه لـه کـومې خپـل بيعـت ورسره اعلانوي.

د امـارت لوړپـوړو غـړو، ټولـو مسـؤلينو او منسـوبينو او افغان غيرتي اولس ته مشوره ورکـوو چـې د اميرالمـؤمنين مـلا اختر محمد منصور سره د بيعت د تجديد بهير ګړنـدى کـړي، ترڅـو د پيښـې د عظمـت څخـه پـه اسـتفادې سره د اسـلام دښمنانو ته د مسلمانانو په منځ کې د درځ پيدا کولو موقع پـه لاس ورنشي.

له الله څخـه غـواړو چـې امير المـؤمنين مـلا اخترمحمـد منصور د مرحـوم اميرالمـؤمنين پـه څېـر د اسلامي حـدودو د ساتنې په خاطر د هر ډول فشار مقابله په پوره متانت او مېړانه سره وکړي.

والسلام،

د مرحوم مولوي رفيع الله مؤذن د کورنۍ لخوا.

### زابل : مرکزقلات کـې هـم دبيعـت لپـاره پراخـي غونـډې ترسره شـوې

دزابل ولايت له مرکز قلات نه په رارسيدلي خبرکـې ويـل شوي چې پرون ورځ دمرکز قـلات اړونـد د بـاوړيو اوملايانوپـه سيموکې دګڼ شمېر علماء کرامو، مجاهدينو ، جهادي مشـرانو اوقـومي مخـورو اوعامــه مســلمانانوله لــوري دعاليقـــدر اميرالمـؤمنين (رحمـه الله) لپـاره دفـاتحې دمراسـمو پـه مهـال پراخي غونـډې تـرسره شـوي چـې پـه مهـال يـې علـماء کرامـو دجهادپه اهميت اوفرضيت خبري وکړي اوله نوي ټاکل شوي اميــر ملااخترمحمدمنصــور حفظــه الله سره يــې دعامــه مسـلمانانو اومجاهـدينو بيعـت تـرسره کـړ اوکلـک هـوډيې څرګندکړچې دجهاد فريضه به جاري ساتي

### دبلوچســتان ايالــت دسرانـانوپــه کمـپ کــې دفاتحې اوبيعت مراسم ترسره شول

دپاکستان هيواد د بلوچستان ايالت دسرانـانو کمـپ پـه سيمه کې په زرګونـو افغـان مهاجرينو، علـماء کرامـو، قـومي مشرانو، اوعامه مسلمانانو دسرپـل ولايـت دمهاجرينولـه لـوري ديوې پراخي جوړه شوي غونډې پـه تـرڅ کـې داميرالمـؤمنين ملامحمدعمرمجاهدرحمه الله تعالى لپاره دقرآن کريم ختمونه، خيراتونه، دعاګاني اودفاتحې مراسم ترسره کړل

ديادونې ده چې پـرون هـم پـه يـاد کمـپ کـې دافغـان مهاجرينو له لوري دمرحوم اميرالمؤمنين لپاره دعاګاني اوپـه هغه پسې خيراتونه اوختمونه ترسره شول

نن اوپرون په يادکمپ کې له نوي ټاکل شوي اميـر مـلا اخترمحمدمنصور سره بيعت هم ترسره شو

### فراه : خاکسفيدديوې پراخي غونــډې پــه تــرڅ کــې لســګونوزرو کســانودفاتحې اوبيعــت مراســم ترسره کړل

دفـراه ولايـت لـه خاکسـفيد ولسـوالۍ نـه داسـلامي امــارت مطبوعــاتي نماينــده (المهــاجر) خبرراکــوي چــې : نن سهار دخاکسفيد ولسوالۍ اړوند د ديوال سرخ پـه سيمه کې دعاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد(رحمـه الله ) په ياد اودنوموړي دفاتحې په موخه يـوه پراخـه غونـډه دائـره شوه

زموږ مطبوعـاتي نماينـده چـې دې غونـډې تـه ورغلـى ؤ وايې : دې غونډې ته چې دفراه ولايـت مرکـز ، خاکسـفيد ، پشـتکوه ، فـراه رود ، بـالابلوک ، انـاردرې ، پشـترود ، شـيبکو ولسواليو اونورو سيمو څخه په لسګونه زره علماؤ ، مجاهدين ، قومي سپين ږيري اوپه دين مـين مسلمانان راغـلي ؤ علماؤ مفصلي ويناوي وکړي

غونـډه دسـهار پـه ۸ بجـې پيـل شـوه چـې لمـړى د عاليقـدراميرالمؤمنين رحمـه الله لپـاره دقـرآن کـريم خـتم ، فاتحــه اودعاګــاني تــرسره شــوي وروســته علــماء کرامــو

دعاليقدراميرالمؤمنين په ژوند او دهغه په جهادي کارنامو اودهغه په ارمانونو رڼاګاني واچولي اوهم ټولو مسلمانانوته د اسلامي امارت دنوي ټاکل شوي امير محترم ملااختر محمد منصور صاحب حفظه الله سره دبيعت کولو په اړه خبري وکړي

په غونډه حاضرو په لسهاؤ زره کسانوچې علماء ، قومي مشران ، مجاهدين اوپه دين مين مسلمانان پکې موجود ؤ په يوه خوله له نوي ټاکل شوي امير منصورصاحب سره بيعت اعلان وکړ اوکلک هوډ يې څرګندکړ چې دژوند ترپايه به دنوموړي په قيادت کې روان جهاد جاري ساتي اوپه دې لاره کې به له هيڅ راز قرباني دريغ نکړي

**دپاکستان دکراچۍ په ښارکې افغان عالمانو اوعامه مسلمانانودفاتحې اونوي بيعت مراسم ترسره کړل**

دګاونډي هيواد پاکستان له کراچۍ ښار نه په رارسيدلي خبرکې ويل شوي چې : نن سهار دکراچي ښارپه مربوطاتوکې ګڼ شمېر افغان علماؤ، دمدرسو استاذانو ،مخورو اوعامه مسلمانانو ديوې پراخې غونډې په ترڅ کې دامير المؤمنين ملامحمدعمر مجاهد (رحمه الله ) لپاره دقرآن کريم ختم اودفاتحې مراسم ترسره کړل اونوموړي ته يې دعاګاني وکړي.

وروسته په يوه اتفاق ټولو علماؤ ، مخورو ، دمدرسو استاذانو او عامه مسلمانانو له نوي ټاکل شوي امير ملااخترمحمدمنصور صاحب حفظه الله سره بيعت اعلان کړ اودبيعت له مراسمووروسته يې نوموړي ته داستحکام ، ثبات اوبرياليتوب دعاګاني وکړي.

**دکونړ دپخواني والي مرحوم مولوي عبد الهادي اخنداده دکورنۍ او ملګرو لخوا د عاليقدر امير المؤمنين دوفات له امله د فاتحې او دنوي زعيم سره دبيعت مراسم ترسره شول**

دهجرت ددیار (پاکستان) خیبر پښتونخوا ایالت کواټ غلام بانډې دسافيانو په جامع مسجد کې دارواښاد عاليقدر امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد (رحمه الله)روح ته دايصال ثواب پخاطر د داسلامي امارت دواکمنۍ پر مهال دکونړونو ولايت مرحوم والي مولوي عبد الهادي اخنداده دکورنۍ او ملګرو لخوا دجمعې دلمانځه وروسته دعظيم الشان قرآن ختم او دفاتحې مراسم ترسره شول، په دې مناسبت جوړه شوې غونډه کې دپروان اوکاپيساه دطالبانو د پخواني دلګۍ مشر او دکوه صافي په اوسني جهادي مسؤل مولوي ذبيح الله سربيره په لوی شمېر کې علماوو ، طالبانو ، مجاهدينو او عامو خلکو ګډون درلود، دغونډې په پيل کې مولوي شمس الدين منصور تمهيدي وينا وکړه او دمرحوم امير المؤمنين په مجاهدانه کارنامو اوکردار يې لنډه رڼا واچوله او ور ته يې له درناوي ډکې پيروزينې وړاندې کړې وروسته دافغانستان اسلامي امارت دواکمنۍ په مهال دمالې وزرات معين او اوس ددعوت ارشاد کميسون برحال غړي مولوي عارف الله عارف وينا وکړه نوموړي پخپله وينا کې مجاهدين اتحاد او يو والي ته را وبلل او دمشر۔ ملا صاحب جهادي کارنامې او سترياوې يې وستايلې ورپسې۔ دغونډې د برخوالو لخوا داسلامي امارت له نوي زعيم امير المؤمنين ملا اختر محمد منصور سره بيعت اعلان شو او د نوموړي په رهبرۍ کې د هېواد دازادۍ او اسلامي نظام د نفاذ په لار کې دهرډول قربانيو ورکولو عهد وشو، غونډه دشيخ الحديث مولانا صالح محمد صاحب لخوا په دعاء کولو پای ته ورسيده.

**دهلمندولايت په مرکز او مربوطه ټولو ولسواليو کې دفاتحې اونوي بيعت مراسم ترسره شول**

دهلمند ولايت له مرکز نه مسؤول مجاهدين خبرراکوي چې : دنورو ولاياتو ترڅنګ نن اوپرون دهلمند ولايت دمرکز دنورو سيموترڅنګ دصافيانوپه سيمه کې اوټولو ولسواليو کې دزرګونو علماء کرامو، قومي مشرانو ، مجاهدينو اوعامه مسلمانانوله لوري دپراخو غونډو په ترڅ کې دقرآن کريم دختم ترڅنګ اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد( رحمه الله ) لپاره دعاګاني ترسره شوي

وروسته په ټولو سيموکې علماء کرامو ، مجاهدينو ،قومي مشرانو اوعامه مسلمانانو داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امير محترم ملااخترمحمدمنصور صاحب حفظه الله سره بيعت وکړ اوپه يوه خوله يې وويل لکه څرنگه چې مو داميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد (رحمه الله ) په ژوندکې سپيڅلي اسلامي فريضي جهاد ته دوام ورکړی ؤ همداسي به يې دنوي امير محترم منصور صاحب په مشري دوام ورکو

**دغورولايت په مرکز او ټولو ولسواليو کې دفاتحې او له نوي اميرسره دبيعت مراسم ترسره شول**

نن سهار دغورولايت په مرکز اوټولو ولسواليو کې دزرگونو علماء کرامو، مشائخو ، قومي مشرانو ، مجاهدينو اوعامه مسلمانانو له لوري په پراخه کچه دگران عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد( رحمه الله رحمة واسعة ) لپاره دقرآن کريم ختم اودعاگاني وکړي

نومړو په دي غم کې دنړۍ له ټولو مسلمانانو اوخصوصا داميرالمؤمنين رحمه الله کورنۍ اودهغه ټولو مخلصينو ملگرو سره ځان شريک وبلل او له نوي امير ملااخترمحمد (منصور) حفظه الله سره يې په يوه خوله بيعت وکړ

نومړو داسلامي امارت درهبري شورى له غړو او ټولو مخلصينوڅخه مننه وکړه چې په حساس وخت کې يې خپل امير دمسلمانانو لپاره انتخاب کړ

همداراز داسلامي امارت دغور ولايت والي محترم الحاج ملا عبدالخالق عابد شخصا او دغورولايت دغيورو مسلمانانو اومجاهد ملت په نمايندگي له نوي ټاکل شوي امير محترم ملا اخترمحمد منصور حفظه الله سره په لاس بيعت وکړ

اوهمداراز دغورولايت داسلامي امارت دمرافعې محکمې رئيس مولوي عبدالکريم صميم دتلفون په کرښه داسلامي امارت دغورولايت مطبوعاتي نماينده په توسط د مرحوم اميرالمؤمنين په غم کې له ټولو مشرانو اورهبري شورا اوټولو مسلمانانوسره ځان شريک وبلل او له نوي امير محترم سره يې خپل بيعت په ډاگه کړ

**دبغلان اوغزني جهادي مسؤولينودنورستان ولايت مرستيال اودپکتياعمومي مسؤول دخپلو مجاهدينوپه نمايندگۍ له نوي اميرسره بيعت وکړ**

دبغلان ولايت جهادي مسؤول محترم ملامحمد اسماعيل، دغزني ولايت جهادي مسؤول محترم مولوي محمد قاسم ، دنورستان ولايت مرستيال محترم مولوي منيب الله او دپکتيا ولايت عمومي مسؤول مولوي عبدالکريم داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي اميرمحترم ملااخترمحمدمنصور (حفظه الله) سره دخپلو خپلو ولايتونو دمجاهدينوپه نمايندگۍ بيعت وکړ

نومړو په خپلو پيغامونوکې ويلي لکه څرنگه کې په دې ولايتونوکې داسلامي امارت مجاهدينو دعاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد (رحمه الله) سره بيعت کړی ؤ هماغه شان يې له محترم ملااخترمحمدمنصور صاحب سره هم بيعت دی اووايي چې موږ په منصورصاحب پوره اعتمادلرو ددوی په قيادت کې هرډول خدمت ته چمتويو او خپل روان جهادته به ادامه ورکوو

❊ ❊ ❊

پرون ورځ د۲۰۱۵ کال داگست په لومړي نيټه ددهجرت په ديارگردجنگل پوستي چاغي سرانانو ځنگل سرخاب مسلم باغ لورلايي زيړ کاريز په کيمپونو کې دکمپنو دعلماواو مشرانولخواپراخي غونډي جوړي سوي په غونډوکي دکمپنو علماء کرامو مشايخو دمدرسو استادانو اوعامو مسلمانانو گډون کړي وو دکمپنو په دي لويو غونډوکي دمرحوم عاليقدر امير المؤمنين ملامحمد عمر مجاهد پاک روح ته دوعاوي وسوي اودقرآن عظيم شان ختمونه وسول:

هم دارازدامارت له نوي آمير محترم ملااختر محمد منصور صاحب سره دغونډو دگډونوالو لخوا په سمع او اطاعت بيعت وسو اوټولو وعدي وکړي چي دژوند تر اخيري سلکي به

دمرحوم امیر المؤمنین لاره تعقیب کړو اودده مبارک په ژوندده له مرستیال او اوسني امیر څخه به اطاعت کو و

**دفارياب والي قاري صلاح الدين داسلامي امارت له نوي زعيم سره دخپلو مجاهدينو په نمايندگي بيعت اعلان کړ**

د فارياب والي قاري صاحب صلاح الدين په يو مخابروي پيغام کي وايې چي : زه د فارياب ولايت د مجاهدينو په نمايندگي داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امير محترم منصور صاحب سره بيعت اعلانوم، قاري صاحب وايې چي : دفارياب ولايت ټول مجاهدين( ازبک،تاجک، پښتون اوترکمن) لکه څنگه چي يې داميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد سره بيعت کړی ؤ هماغه شان يې له نوي امير ملا اختر محمد منصور صاحب سره هم بيعت دی، داسلامي امارت زعيم (منصور صاحب ) موږ له نژدې پيژنو، ددوی په قيادت کي هر ډول خدمت ته چمتو يو او خپل روان جهاد ته به ادامه ورکوو

**د کونړ ولايت پخوانی جهادي مسئول او مرکزي نظامي کمېسيون برحال غړی شيخ القرآن عبدالرحيم ابي الشرک تعزيت او بيعت**

بسم الله الرحمن الرحيم

د عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد د وفات په مناسبت د هغه درنې کورنۍ، ټولو مجاهدينو او مسلمانانو ته د تسليت درانه کلمات وړاندې کوم : أحسن الله عزاءنا، و أعظم اجرنا، وغفر لميتنا. ان لله ما أخذ وما آعطی، وکل شيء عنه بأجل مسمی، فلنصبر ولنحتسب. انا لله وانا اليه راجعون.

د الله جل جلاله دربار ته لاسونه لپه کوم چې زموږ د مرحوم امير ټول جهود او قرباني قبولې کړي. موږ که څه هم د اميرالمؤمنين په وفات ډېر دردمن يو، خو د الله جل جلاله قضاء ده او زموږ پرې رضاء.

بالمناسبة د نوي أميرالمؤمنين ملا اخترمحمد منصور حفظه الله ونصره و أعانه علی تکاليف الامارة سره علی السمع والطاعة د بيعت اعلان کوم. زه او زما ټول ملگري به په شرعي چوکاټ کې د اميرالمؤمنين د هر فرمان اطاعت کوو. پای کې اميرالمؤمنين او نائبينو شيخ الحديث هبة الله اخونزاده او ملا سراج الدين حقاني ته د تمامِ موفقيت دعاء کوم او ټول مسلمانان يې بيعت ته رابولم.

والسلام

عبدالرحيم ابي الشرک

**د کونړ ولايت پخوانی جهادي مسئول او مرکزي نظامي کمېسيون برحال غړی**

دروزگان ولايت په مرکز اوټولو ولسواليوکې فاتحه اوله نوي اميرسره بيعت وشو

دافغانستان اسلامي امارت دروزگان ولايت د مرکز ترينکوټ اودهمدې ولايت اړوند په ټولو ولسواليو کې د زرگونو مجاهدينو، علماء کرامو ، قومي مشرانو اوعامه مسلمانانوله لوري داميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد( رحمه الله تعالی) ورروح ته دقرآن کريم ختمونه اودعاگاني وشوي او له نوي ټاکل شوي امير ملااخترمحمدمنصور صاحب سره يې بيعت وکړ

نومړو ويل : څرنگه چې موږ له اميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد(رحمه الله تعالی) سره بيعت کړی ؤ هماغه شان مو له نوي اميرسره بيعت دی اودنومړي په قيادت کې به دجهاد فريضي ته دوام ورکوو

**دمولوي صاحب خالص دنژدې ملگرو له لوري داميرالمؤمنين د وفات دتعزيت او په نوي امير باندي داعتماد اظهار ليک**

بسم الله الرحمن الرحيم

د افغانستان د اسلامي امارت د مشرتابه محترم مقام ته!

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

د عاليقدر اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد د خواشينوونکې مړينې له کبله تاسو ټولو مجاهدينو او ټول امت ته د تسليت مراتب تقديموو. الله جل جلاله دې د هغه مساعي

په خپل دربار کې قبول کړي. د هغـه د جهاد او قربـانۍ ثمـره دې الله جل جلاله نه خرابوي.

د هغه ځای ناستي اميرالمؤمنين ملا اخترمحمـد منصـور باندې د اعتماد اظهار کوو. دعاء کوو، چې الله جل جلاله يې په خپلـو چـارو کـې موفـق او کاميـاب کـړي. همــدا ډول د اميرالمـؤمنين دواړو نائبـانو هـر يـو شـيخ الحـديث هبـة الله اخونزاده او ملاسراج الدين حقاني ته د ښه خـدمت او جهـاد د دوام دعاء کوو.

دې ټولو شخصيتونو پخوا هم ښه جهاد کړی او د اسلامي امارت سر کرده او معتمد خلک وو. دا چې د اسلامي امـارت اهل الحل والعقد دوی باندې د امارت د مشرۍ لپاره اعـتماد کړی، موږ هـم پـه خپـل وار او اسلامي مسئوليت لـه کبلـه دا فيصله تاييدوو. الله جل جلاله مو موفق او کامياب لره!

قاري محمود شاه، قاري الهام الدين او مولوي نجم الدين

د مولوي صاحب خالص له نږدې ملگرو څخه

**په کندهارښــارکې هــم دمرحــوم اميرالمـؤمنين لپاره دعاگاني اوله نوي اميرملاتړ وشو**

دکنـدهار ولايـت لـه مرکزکندهارښار نـه پـه رارسـيدلي خبرکـې مسـؤول مجاهـدين وايـې چـې : نـن سـهار لـه لمانځـه وروسته دکندهارښار په جامع جوماتونو کـې اوهمـداراز ددې ولايـت پـه ټولـو ولسـواليو کـې داسلامي امـارت درهـبر اميرالمـــؤمنين ملامحمـــد عمـــر مجاهـــد (رحمـــه الله ) لپاره دعاگاني اوختمونه ترسره شول

همداراز ددې ولايت ټولو خلکو پـه يـوه خولـه دنـوي ټاکـل شـوي اميـر ملااخترمحمدمنصـور اودهغـه لـه معاونينوسره خپل بيعت اعلان کړ او کلک هـوډ يـې څرگنـدکړ چـې تـر وسـه وسـه بـه داسلامي امـارت همکـارۍ تـه دوام ورکوي

**دسترليکوال اومورخ شـهيد ملامحمدحسـين مستسعد دکورنۍ او ملگرو دتعزيت اوبيعت پيغام**

نحمده ونصلي علی رسوله الکريم امابعد قـال الله تبـارک وتعالی فی القران الکريم بسـم الله الـرحمن الـرحيم کـل نفـس ذايقته الموت

زه ډاکټر احرار د شهيد مـلا محمـد حسـين مستسـعد او شهيد ډاکټر محمد سيد احرار د ملگرو او کورنۍ علـما کرامـو او د امارت په مختلفو شـعبو کـی مصرـوف ملگـری تـر هرڅـه وړانـدی د عاليقـدر اميرالـمومنين مـلا محمـد عمـر مجاهـد رحمت الله ورور ملا منان اخند محـترم زمـوږ د ټولـو د ذړه سر مولـوی محمـــد يعقـــوب صـــاحب او ددی کـــورنۍ د اميـــر المومنين ځای ناستی محترم منصور صاحب او د امارت ټولـو دردمنو مشرانو او د سنگر طالبانو ته د زړه له کومی د تسليت مراتب وړاندی کوم اوله لوی الله نه اميرالمومنين ته په جنـت کی داعلی مقام غوښتونکی يو الله تعالی دی د رسول الله صـلی الله عليه وسلم سره يو ځای کړی د د کـورنۍ او ملگـرو تـه دالله تعالی په دربار د صبر جميل غوښـتونکی يـو او د امـارت نـوی زعيم ملا اختر محمد منصور صاحب سره خپل بيعـت پـه پـوره اخلاص وړانـديکو او دهـر راز قربـانی او خـدمت ژمنـه کـوو او دالله تعـــالی لـــه لـــوری د نصرـــت دعاورتـــه کـــوو د امارت له ټولو مسولينو څخه طمع لرو چی د اسلامی امـارت او اميرالمومنين ټول وياړونو او د شهدا و د قربانيو ته درانـوی ولری او دولری او دهـر راز اختلافـاتو مخـه ونيسـی او د عـزم روان بريالی بهير په چټکی سره پرمخ بوزی او د نظامی گړنديو عملياتو تر څنگ په سياسی ډگر کی هم خپل استقلال خوندی وساتی او د اميرالمومنين د کـورنۍ او ملگـرو جـايز غوښـتنی په نظر کی ونيول شی او د اسلامي امارت هغه بـی لاری شـوی افراد چی د بل په لمسون د اسلامی امارت په صفوفو کی نفاق او نفرت ته لمن وهی په کلکه يی مخه ونيول شی پـه پـای کـی يـو ځـل بيـا پـه يـووالی او سـپيڅلتيا ټينگـارکوو او داچـی زه د هيواد په داسی سيمه کـی وم چـی تلفـون او انټرنيـټ تـه لاس رسی نه و پـه دی سـتر نـاورين کـی د ناوختـه برخـه اخيسـتلو معذرت غواړم

د اسلامی امارت د بریا او ثالث عمر د ویاړونو د خوندی توب په هیله

د شهیدمستسعد رحمت الله علیه کورنۍ ' ملګرو په نمایندګی ډاکټر محمد طاهر احرار د اسلامی امارت د نظامی کمیسون د سرحداتو مسؤل

## د ننګرهار دشهید انجنیرمحمود کورنۍ تعزیت او بیعت

د اسلامي امت د باثباته او شجاع رهبر امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات دردوونکی خبر مو واورېد. الله جل جلاله دې د اسلام او مسلمانانو لپاره ټول زیار ورته په خپل دربار کې قبول کړي. الله جل جلاله دې پرې رحم وکړي، د صدیقینو او شهداءِ صالحینو مرتبه دې ورنصیب کړي. امین

پورته غموونکي خبر سره سره مو د نوي امیرالمؤمنین او نائبانو د ټاکل کېدو خوښوونکی خبر هم واورېد. موږ هم په ډېرې خوشالۍ په خپل وار امیرالمؤمنین ملااخترمحمد منصور سره د بیعت اعلان کوو :

نبایع امیرالمؤمنین ملااخترمحمدمنصور حفظه الله ونصره علی السمع والطاعة في المنشط والمکره وعلی اثرة علینا وعلی ان لا ننازع الامره اهله ما لم نری کفرا بواحا عندنا فیه من الله برهان.

الله جل جلاله ته په زارۍ دعاء کوو، چې امیرالمؤمنین سره له نائبینو په خپلو کارونو او مسئولیتونو کې بریالی کړي.

والسلام

دکمونزم ضدجهاد په کلونکې دمولوي صاحب خالص داسلامي حزب دننګرهار ولایتي مسول او داسلامي امارت ستر حامي او ملا تړي شهید انجنیر محمود دکورنۍ او ملګرو په استازیتوب حاجي انعام الله

## دننګرهارمشهوری روحانی اوجهادی کورنی دخفلو زرګونو عقیدتمندانو په استازیتوب دتعزیت اوبیعت فیغامونه رالیږلی

دمرحوم عالیقدرامیرالمومنین ملامحمدعمرمجاهد دوفات له امله دننګرهار دمشهور روحانی اوجهادی شخصیت مرحوم الشیخ عبدالقیوم فاچاصاحب محترموزامنو هریو مولوی سیداحمد فاچاصاحب مولوی سید احمد فاچاصاحب اومولوی سیدفیض احد باچا صاحب دخفلی متدینی کورنی اوهم زرګونو.عقیدتمندانو ا.ومریدانو له لوری دعالیقد مرحوم کورنی د دتعزیت اوخواشینی فیغام رااستولی دمرحوم.عالیقدررحلت ستره ضایعه بللی دغه راز دوی فه خفل فیغام کی داسلامی امارت له نوی.زعیم اومشر محترم.ملااخترمحمدمنصور دانتخاب له کبله دبیعت اوحمایت ذکرکړی ملااخترمحمدمنصور غوره اودلسوزه امیر یادکړی له الله تعالی نه دمذیدی کامیابی اوسرفرازی هیله کړی

## دملا برادر اخند داعتمادي ملګري قوماندان حاجي ملا عبدالظاهر اخند دتعزیت او بیعت اعلان

دملا برادر اخند اعتمادي ملګری قوماندان ملا عبدالظاهر اخندچي ګڼ شمیر مجاهدین او جهادي دلګۍ لري دامیر المؤمنین رحمه الله دوفات له کبله ټول مسلمه امت ،افغان ولس او دمرحوم کورنۍ ته دتعزیت مراتب وړاندي کوي،نوموړي خوښي وښوده چي دمرحوم امیر المؤمنین پرځای هغه څوک داهل حل والعقد شوری له لوري دامارت زعامت ته وټاکل شوچي مشر ملا صاحب په ژوند کي خپل نائب ټاکلی ؤ، نوموړ دملااختر ممحمد منصور صاحب سره بیعت اعلانوو او دنوموړي په امارت کي به دپخوا په شان خپل جهاد ته ادامه ورکوو

، هرات ، فراه ، فاریاب او روزګان کې په جهادي فعالیت بوخت دي دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله دوفات له امله دنوموړي درنې کورنۍ اوټولو مجاهدینوته دتسلیت اوتعزیت مراتب وړاندي کوي

## دکندهار ولایت دپخواني مسئول ملامحمدزي اخند دتعزیت اوبیعت پیغام

موږ دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله رحلت داسلامي امارت اوپه خاصه توګه دمرحوم امیرالمؤمنین درنې کورنۍ اوداسلامي امارت مجاهدینو اودافغانستان مؤمن اولس لپاره یوه لویه اونه جبرانیدونکي ضائعه بولو

دامیرالمؤمنین رحمه الله درحلت له کبله دمرحوم کورنۍ، داسلامي امارت مشرتابه ، مجاهدینو او مؤمن ولس ته تسلیت وړاندي کوم

او داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امیر محترم ملا اخترمحمد منصور حفظه الله سره دخپل ځان او ټولو ملګرو په استازیتوب بیعت کوم

ټولو مجاهدینو اوافغان مؤمن ولس ته ډاډ ورکوو چې داسلام په چوکاټ کې به په هرډول سختو حالاتوکې دپخواپه شان داسلامي امارت دنوي زعامت هر امر ته لبیک وایو.

والسلام: ملا محمد زی

## دنظامي کمیسیون دغړي الحاج ملامحمدنعیم اخند اوملګرو دتعزیت اوبیعت پیغام

داسلامي امارت دهلمند ولایت پخوانی مسؤول او اوس داسلامي امارت دحلقوي کمیسیوغړی الحاج ملا محمد نعیم اخند دخپلو ټولو دلګی مشرانو اوکشرانوملګرو په نمایندګي دامیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهدرحمه الله درحلت په اړه تسلیت وړاندي کوم او دنوموړي رحلت داسلامي امت بیا خصوصا دمرحوم درنې کورنۍ، دافغانستان اسلامي امارت اومجاهد ولس ته یوه لویه اونه جبرانیدونکي ضائعه بولو.

موږ داسلامي امارت لپاره دنوي ټاکل شوي امیر محترم ملااخترمحمد منصور حفظه الله سره دخپلو ټولو ملګرو په استازیتوب بیعت اعلانوم او دپخوا په شان په هرډول سختو حالاتوکې یې هر امرته دلبیک ویلو ډاډ ورکوم

## مشایخ ، علماء ، مسؤلین و منسوبین امارتي و نماینده های سایر اقوام ولایات شمال دریک جلسه بزرگ بیعت خویش رابازعیم امارت اسلامي افغانستان اعلام نمودند

طبق گزارش رسیده ، جلسه ی که به همین مقصد تدویریافته بود ، مشایخ ، علماء جید ، مسؤلین نامور امارت اسلامي ونمایندهای اقوام مختلف ولایت شمال هر یک بدخشان ، تخار، قندوز، بغلان ، بلخ، سمنگان ، جوزجان ، سرپل، فاریاب ، بامیان و پنجشیر دران شرکت ورزیده بودند

مجلس با تلاوت چند ازایات کلام الله مجید اغاز گردید، سپس عالمان متبحر و بزگوار صفحات شمال ،هریک شیخ القران والحدیث مولوي محمدشریف حقاني ، شیخ القران والحدیث قاري حبیب الله صاحب و محترم مخدوم عبدالسلام سعادت سابق وزیرکار وامور اجتماعي امارت اسلامي بالنوبه سخنان ازرشمند ، عالمانه خویش را بیان فرمودند ، وپیرامون رشادت ، کارنامه ها و قیادت مدبرانه وشجاعانه ی عالیقدر امیرالمومنین مرحوم ملامحمد عمر مجاهد توضیحات دلچسپ وارزنده ایراد فرمودند، ایشان رحلت عالیقدر مرحوم را ضایعهای بزرگ وجبران ناپذیر دانستند ، ازبارگاه الله متعال برای شان جنت الفردوس استدعا فرمودند

سپس متن بیعت با زعیم جدید امارت اسلامي افغانستان محترم ملا اختر محمد منصور توسط محترم مخدوم مولوي عبدالسلام سعادت به نماینده گی از ۱۰ ولایت سمت شمال و اقوام مختلف من جمله ، تاجک ، ازبک ، ترکمن ومغل وغیره قرائت نمودند دراخیر شرکا مجلس به یک وقت دست های شان بخاطر اظهار بیعت بالا کردند ، محفل بادعایه شیخ القران والحدیث قاري حبیب الله پایان رسید

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله نحمده و نستعینه و نصلی علی رسوله الکریم

اما بعد: شکی نیست که وفات و رحلت مینار عزم وجبل استقامت ، سالار کاروان مجاهدین ، ابر مرد تاریخ اسلام و قهرمان قرن بیست و یکم میلادی عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله ضایعه ء جبران نا پذیر و یک خلائی بزرگ درعالم اسلام پنداشته میشود چونکه ایشان خطه ئ باستانی افغان زمین را مرکز تحرکات جهادی و مقاومت علیه استعمارگران جهان قرار داده بودند به این نسبت مراتب تسلیت و تعزیت خویش را به قاطبه امت مسلمه ، مسلمانان دنیا ، سنگرداران اسلام ، مجاهدین امارت اسلامی و علی الخصوص به خانواده شریف عالیقدر امیر المؤمنین رحمه الله و مقام رهبری امارت اسلامی افغانستان تقدیم مینماییم .

و در این مقطع حساس که سیلاب انواع فتن متوجه نتیجه فداکاری های مجاهدین امارت اسلامی افغانستان میباشد وحدت و یکپارچگی صفوف مجاهدین یک ضرورت مبرم پنداشته میشود لهذا منجانب

۱ شیخ القرآن و الحدیث قاری صاحب حبیب الله سمنگانی .

۲ شیخ القرآن و الحدیث محمد شریف حقانی صاحب فعلا رئیس تمیز امارت اسلامی افغانستان

۳ شیخ القرآن و الحدیث عبدالباری سعیدی .

٤ شیخ القرآن و الحدیث مخدوم صاحب عبدالحلیم حنیف .

٥ شیخ القرآن و الحدیث عبدالشکور صاحب کامیاب.

٦ الحاج مولوی مخدوم عبدالسلام سعادت سابق وزیر کار و امور اجتماعی و فعلا عضو مرکزی کمیسون دعوت وارشاد

۷ الحاج مولوی شمس الدین معاون کمیسون دعوت وارشاد

۸ مولوی محمد محسن هاشمی والی سابق تخار و فعلا مسؤل حلقه مشرقی کمیسون نظامی

۹ الحاج ملا عبدالسلام سعادت سابق قوماندان فرقه ٥ کابل و فعلا عضو کمیسون نظامی.

۱۰ مولوی سید قاسم آغا والی اسبق تخار و فعلا عضو کمیسون دعوت و ارشاد

۱۱ مخدوم صاحب مولوی قاری فصیح الدین والی ولایت بدخشان.

۱۲ مولوی عبدالغنی فایق سابق قوماندان فرقه ٤ زرهدار و فعلا معاون ولایت بدخشان.

۱۳ مولوی قدرت الله والی پنجشیر .

١٤ مولوی برهان الدین قانع معاون ولایت بامیان .

١٥ مولوی شبیر احمد عثمانی بدخشانی سابق والی بدخشان و فعلا عضو کمیسون تلفات ملکی .

١٦ مولوی عبدالحی سابق والی پنجشیر.

۱۷ مخدوم صاحب مولوی انعام الله حبیبی رئیس کمیسون نظامی ولایت سمنگان.

۱۸ مولوی صاحب اسلام الدین عثمانی سابق معاون ولایت بامیان .

۱۹ مولوی عبدالحکیم حکمت معاون مجله مورچل.

۲۰ مولوي سید عارف سابق والي فاریاب ۲۱ مولوي عبدالسلام حقاني مهتمم جامعه عبدالله ابن مسعود ۲۲ مولوي سید ذکرالله اغا مسؤل اسرای جوزجان ۲۳ مولوي محمدامین قومندان جهادي ولایت سمنگان ۲۴ مولوي هدایت الله سابق معاون والي جوزجان ۲۵ مولوي عبدالحی قومندان جهادي ولایت بغلان ٢٦ مولوي احمدجان سکتر ریس الوزرا امارت اسلامي افغانستان سابق ۲۷ مولوي عظیم جان سابق معاون لوا ۹ زرهدار ۲۸ مولوي عبدالواحد عالم جید ولایت جوزجان ۲۹ شیخ الحدیث مولوي عبدالکبیر عضوه مرکزي تعلیم وتربیه ۳۰ الحاج قومندان کاظم قومندان جهادي ۳۰ مولوي عبدالغیاث قانع سابق معین وزارت زراعت ، ۳۱ مولوي حفیظ الله سابق امر جنایی ولایت جوزجان ۳۲ مولوي حمیدالله نماینده قوم ترکمن ، ۳۳ مولوي عین الدین سابق ریس اداري موادمخدره ۳۴ مولوي شیرمحمد مهتمم مدرسه فاروقیه ۳۵ مولوي عبدالقادر عالم جید دهنه غوري ۳٦ قاري خیرالدین دهنه غوري ۳۷ شیخ الحدیث مولوي علم جان خدرخیل ۳۸ مولوي عبدالبصیر سابق ریس

کمیسون نظامي بامیان ۳۹ قاري عبدالمالک مهتمم دارلحفاظ معاذ بن جبل ۴۰ ، قاري عتیق الله استاد جامعه عبدالله ابن مسعود ۴۱ مولوي صاحب لعل جان قومندان برجسته ولایت بغلان ۴۲ مولوي محمد اصف نماینده دعوت ارشاد ولایت بدخشان ۴۳ مولوي محمدعالم سابق معاون ولایت تخار ۴۳ مولوی نور الدین سابق والي تخار ۴۴ مولوي محمدیوسف مسؤل کمیسون ولایت بغلان ۴۵ مولوي فضل الدین فیاض ولسوال دره سوف ۴۵ مولوي فیروزالدین منیب ، نماینده ولایت سمنگان ۴۶ مولوي ذاکرالله عالم جید سمنگان ۴۷ قومندان شرین سابق والي پروان ۴۸ مولوي عبدالحنان عضوه کمیسون ولایت بغلان ۴۹ مولوی عبدالکریم عالم جید بغلان ، ۵۰ شیخ الحدیث مولوي عبدالغفار هدفمند سابق ریس کمیسون بدخشان ۵۲ ملا عبدالحنان معاون والي، بدخشان ۵۳ملا عبدالمجید دلگی مشر. ۵۴ قاري عنایت الله مسؤل فرهنگي ولایت پنجشیر .

مشایخ ، علماء ، استادان ، مسؤلین ، منسوبین و سایر اقوام مختلف ولایات شمال افغان زمین هر یک بدخشان ، تخار، قندوز، بغلان ، بلخ، سمنگان ، جوزجان ، سرپل ، فاریاب ، بامیان و پنجشیر .

با محترم ملا اختر محمد منصور حفظه الله زعیم منتخب به حیث جانشین امیر المؤمنین رحمه الله تعین گردیده اند بیعت خویش را اعلام میداریم و جهت استحکام بیشتر پایه های امور جهادی و تنظیم سایر امورات مهم کشور از هیچ گونه قربانی و فدا کاری دریغ نمی ورزیم و از خداوند متعال مسئلت داریم ایشان را در مسیر امیر المؤمنین رح ثابت قدم داشته و جهت تحقق عدالت اجتماعی ، تحکیم نظام اسلامی و بر آوردن آرمان شهداء سه ده جهاد افغانستان توفیق و نصرت خویش را شامل حال شان بگرداند والسلام .

## دکندهار ولایت دابتدائیه محکمې دمسؤولینو دتعزیت اوبیعت پیغام

داسلامي امارت د کندهارولایت دابتدائیه محکمې مسؤلین هریو شیخ الحدیث والتفسیرمولوي عبدالسلام صاحب (قاضي) شیخ الحدیث والتفسیر مولوي عبدالظاهرصاحب (مفتي ) اوجید عالم مولوي عزیزالله صاحب (مفتي) مولوي احسان الله صاحب (محرر) موږ ته داسلامي امت دباثباته اوشجاع رهبر امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله دوفات د دردونکي خبر په رارسیدلو سره دنوموړي درنې کورنۍ اوټولو مجاهدینو ته دتسلیت مراتب وړاندي کوو الله تعالی دي په امیرالمؤمنین باندي خپل رحم وکړي اوکورنۍ اومجاهدینوته دي صبرجمیل ورکړي

همداراز موږ داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امیر محترم ملااخترمحمدمنصور صاحب حفظه الله سره دخپل بیعت اعلان کوو او طاعت یې پرځان لازم بولو

## دکندوز ولایت دجهادي شخصیت الحاج ارباب هاشم مجاهد دمحاذ دتسلیت اوبیعت پیغام

دکندوزولایت دجهادي شخصیت شهید الحاج ارباب هاشم مجاهد دمحاذ مجاهدینو او کورنۍ په استازیتوب دکندوز ولایت پخوانی مسؤول مولوي محمدقاسم دامیر المؤمنین ملامحمدعمر مجاهد (رحمه الله) درحلت په اړه دنوموړي درنې کورنۍ ، دمشرتابه محترم مقام ، درهبري شوری محترمو غړیو او ټول مجاهد ملت ته دتسلیت مراتب وړاندي کوم الله تعالي دي نوموړي ته جنت الفردوس ، کورنۍ اومجاهدینوته دي یې صبرجمیل ورنصیب کړي

زه دخپلو ټولو مجاهدینو ، مربوطینو او کورنۍ په استازیتوب داسلامي امارت لپاره دنوي ټاکل شوي زعیم ملااخترمحمدمنصور حفظه الله سره بیعت اعلانوم او هرامرته یې دلبیک ویلو ډاډ ورکوم

والسلام : مولوي محمدقاسم دکندوز ولایت پخوانی مسؤول او دشهیدالحاج ارباب هاشم مشر زوی

## دملامحمدزي اخند دتعزیت اوبیعت پیغام

موږ دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله رحلت داسلامي امارت اوپه خاصه توګه دمرحوم امیرالمؤمنین درنې کورنۍ اوداسلامي امارت

مجاهـدینو اودافغانسـتان مـؤمن اولـس   لپـاره یـوه  لویـه اونـه جبرانیدونکي ضائعه بولو

دامیرالمـــؤمنین رحمـــه الله  درحلـــت لـــه  کبلـــه دمرحـوم  کـورنۍ ، داسلامي امـارت مشرـتابه ، مجاهـدینو او مؤمن ولس ته   تسلیت وړاندي کوم

او داسلامي امارت له نوي ټاکل شـوي  امیـر محـترم مـلا اخترمحمدمنصور حفظـه الله  سره دخپـل  ځـان او ټولـو ملګـرو په  استازیتوب  بیعت کوم

ټولو مجاهدینو اوافغان مؤمن ولـس  تـه  ډاډ ورکـوو چې داسلام په چوکاټ  کې به په هرډول سختو حـالاتوکې دپخواپـه شان  داسلامي امارت دنوي زعامت  هر امر ته  لبیک وایو

والسلام  : ملا محمد زی

## دحلقوي کمیسیون دغړي الحاج ملامحمدنعیم اخند اوملګرو دتعزیت اوبیعت پیغام

داســـلامي امـــارت  دهلمنـــد ولایـــت پخـــوانی مسـؤول  او  اوس  داسـلامي امـارت دحلقـوي کمیسـیوغړی الحـاج مـلا محمـد نعـیم اخنـد  دخپلـو ټولـو دلګـی مشرـانو اوکشرـانوملګرو پـه نمایندګي دامیرالمـؤمنین ملامحمـدعمر مجاهدرحمـه الله  درحلـت پـه اړه تسـلیت وړانـدي کـوم  او دنوموړي رحلت  داسلامي امـت  بیـا خصوصـا دمرحـوم درنـې کورنۍ  ، دافغانستان اسلامي امارت  اومجاهـد ولـس  تـه  یـوه لویه  اونه جبرانیدونکي ضائعه بولو

موږ داسلامي امارت لپاره دنوي ټاکل شوي امیـر محـترم ملااخترمحمد منصـور حفظـه الله  سره  دخپلـو ټولـو ملګـرو پـه استازیتوب  بیعت اعلانوم  او دپخوا په شان په هـرډول سـختو حالاتوکې یې هر امرته  دلبیک ویلو ډاډ ورکوم.

## هلمنـــد: ددیشـــو ولســـوالۍ دجهـــادي مســـؤول اوملګرو دتعزیت اوبیعت پیغام

دهلمنـــد  ولایـــت  ددیشـــو ولســـوالۍ  دنـــامتو قومندان  شهید الحاج مولوي عبدالظاهر(حاجي احمد) کورنۍ او هغـه ورور اودهمـدي ولسـوالۍ جهـادي مسـؤول  ملاشـاولي (ضرار) دخپلـو ټولـو دلګـی مشرـانو او ملګـرو پـه  نماینـدګي دعالیقـــدر امیرالمـــؤمنین ملامحمدعمرمجاهـــد (رحمـــه الله) دوفات لـه املـه دنوموړي درنـې کـورنۍ ، مجاهـدینو اوعامـه مسلمانانوته  دتسلیت مراتب وړاندي کوم

ورپسېـ  داســلامي امــارت  داهــل الحــل والعقــد لــه لوري  دنوي ټاکـل شـوي امیـر محـترم مـلا اخترمحمدمنصـور حفظـــه الله  سره  دخپلـــو ټولـــو دلګـــی مشرـــانو اوکشرـــانو مجاهدینو  اومتعلقینوپه نمایندګۍ بیعت اعلانوم اوپه هـرډول شرائطوکې به یې دټولو شرعي اوامرو  تنفیذ ته غاړه ایږدو

## دبلوچستان ایالت دمسلم باغ  دافغان مهـاجرو په کمپ کي دیوې لویې جلســې ګــډونوالو دمنصـور صاحب حفظه الله سره بیعت اعلان کړ

دبلوچستان ایالت دمسلم باغ  دافغـان مهـاجرو او  دزیـر کاریز په کمپ کي یوه  لویه جلسه وشوه ،په یاده شـوې غونـډه کې په زرهاوو کسانو دمرحوم امیرالمومنین رحمـه الله  روح تـه دوعـاوي وکړې،کـورنۍ او ټـول مسله امـت تـه یـې د مرحـوم دوفات له کبله تعزیت وړاندي کړ، دغونډې برخه والو پـه یـوه اواز سره  داهل حل والعقـد شـوری لـه لـوري داسلامي امـارت لپـاره د نـوي غـوره شـوي  زعـیم مـلا اخترمحمدمنصـورحفظه الله  سره یی بیعت اعـلان کـړ،او ژمنـه یـې وکـړه چـې دمنصـور صاحب په قیادت کي به هـم داسلامي امـارت سره دپخـوا پـه شان خپله ځاني  او مالي همکاري جاري وساتي .

## دشهید مولوی میر احمـدګل هاشـمی صـاحب دکورنۍ او ملګرو لخوا دتسلیت اوبیعت پیغام.

مونږ دامیرالمؤمنین ملا محمد عمرمجاهـد(رح ه) وفـات داسلامي امت اوپه خاصـه توګـه دمرحـوم کـورنۍ اوداسلامي امـــارت د سرښـــندونکو مجاهـــدینولپاره یـــوه لویـــه اونـــه جیبرانیدونکی ضائعه بولو.

د محترم امیرالمـؤمنین رحمـه الله دوفـات لـه کبلـه دده درنې کورنۍ، داسلامي امارت مشرتابه اومجاهدینوتـه تسـلیت وړاندي کوو.اوداسلامي امارت له  زعیم امیرالمـؤمنین محـترم ملااخترمحمدمنصـور صـاحب سره خپـل بیعـت اعلانـووا ود

اسلامي امارت مجاهدینوته ډاډ ورکوو چې داسلامی امارت تر قیادت لاندی به په هرډول حالاتوکی دپخوا په شان د قربانیو تر څنګ د اسلامي امارت دنوي زعامت هرامرته په پوره اطاعت سره لبیک وایو.

دشهید مولوی میراحمدګل هاشمی صاحب کورنۍ او ملګری!

**دهرات مرستیال والي دیوې پراخي غونډې په ترځ کې دتعزیت اوبیعت مراسم ترسره کړل**

د افغانستان اسلامي امارت دهرات ولایت د مرستیال والي ملا عبدالمنان محمود دبادغیس ولایت دمرغاب ولسوالۍ په مربوطاتوکې یوې پراخې غونډې ته چې په سلګونو علماء کرام ، مجاهدین ، قومي مشران اوعامه مسلمانان پکې راغونډشوي ؤ دقرآن کریم ختم او دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد رحمه الله ته دعاګاني وکړي دنومووړي کورنۍ اومجاهدینوته یې تسلیت وړاندي کړ

وروسته نوموړي دولایت دټولو مجاهدینو ، علماؤ قومي مشرانو په نمایندګۍ داسلامي امارت داهل الحل والعقد شورى له لوري ټاکل شوي امیر محترم ملااخترمحمدمنصور حفظه الله سره په سختي اواساني کې علی السمع والطاعة دبیعت اعلان وکړ او نوموړي ته یې دښه قیادت لپاره دعاوي وکړي

**دفراه ولایت جهادي مسؤولینو دیوې پراخې غونډې په ترځ کې دتعزیت اوبیعت مراسم ترسره کړل**

دفراه ولایت جهادي مسؤولینو هریو الحاج ملا فاضل صدیق الامین ، دبکوا ولسوالۍ جهادي مسؤول حاجي ملا عبدالباري حمید ، دقراه رود ولسوالۍ جهادي مسؤول حاجي ملاعبدالرزاق راشد، دګلستان ولسوالۍ جهادي مسؤول حاجي فرهاد ، دبالابلوک ولسوالۍ جهادي مسؤول ایوبي ، دبکوا ولسوالۍ دملکي اداري مسؤول حاجي عباس او دنیمروزو ولایت ددلارام ولسوالۍ جهادي مسؤول دشهیدملاعبدالرحمن نیکه ورور حاجي عبد الغفور دیوې پراخي غونډې په ترځ کې چې پکې سلګونو ، علماء کرامو، مجاهدینو ، قومي مخورو اوعامه مسلمانانو برخه اخیستي وه دقرآن کریم دختم ترڅنګ دعالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله لپاره دعاګاني ترسره کړي او دنوموړي درنې کورنۍ اومجاهدینوته یې دتسلیت مراتب وړاندي کړل.

وروسته ټولو په خپل نوبت دخپلي خپلي سیمي دمجاهدینو ، علماء کرامو قومي مشرانو اوعامه مسلمانانو له لوري داسلامي امارت له نوي ټاکل شوي امیر محترم ملا اخترمحمدمنصور حفظه الله سره دبیعت اعلان وکړ

**پیام تسلیت وبیعت ریاست تمیزوریاست های مرافعه وابتدابه امارت اسلامي افغانستان ریاست تمیز پیام تسلیت باخانواده امیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد (رحمه الله) وبیعت باامیر جدیدامارت اسلامي افغانستان**

الحمدلله الذین فضل المجاهدین علی القاعدین درجه ، وقال لهم ،(جاهدوالکفار والمنافقین والصلاه والسلام علی امام المجاهدین محمدوعلی اله واصحابه اجمعین .

وبعد، شکی نیست که وفات عالیقدر امیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد ( رحمه الله ) یک ضایعه جبران ناپذیروخلا بزرگ درعالم اسلام است ، چونکه ایشان خطه یی افغان زمین مرکزتحرکات جهادي ومقاومت علیه استمعارگران جهان قرار داده بود ، فلهذا مراتب تسلیت وتعزیت خویش رابه تمام مسلمانان دنیا وسنگرداران اسلام ومجاهدین امارت اسلامي افغانستان علی الخصوص به خانواده شریف امیرالمومنین مرحوم رح ومقام شورای رهبری امارت اسلامی افغانستان تقدیم مینمایم :

چونکه امیرالمومنین رحمه الله درحیات خود جناب محترم ( ملااخترمحمد منصور، حفظه الله ) رانائب خودتعین کرده بود وبعد ازوفات مرحوم وی توسط شورای عالی رهبری امارت اسلامی افغانستان بحیث امیرالمومنین انتخاب گردید بناء تمام پرسونل تمیز امارت اسلامي افغانستان اعم ازریاست

های مرافعه وابتدایه درحالیکه جناب ( شیخ القران والحدیث حضرت مولنا محمدشریف حقانی ، مدظله العالی ) حاضر بود ، وی را شخص مناسب درشرایط فعلی باین عهده داشته ، باایشان بیعت می نمائیم وازالله تبارک وتعالی توفیق مذید رابوی خواهانیم . امین ثم امین

**د پښتون خوځښت غندنلیک!**

پدې وروستیو کې د حکومت امینتې ادارې په هیواد کښې د طالبانو د مشر د فاتحې د مراسمو په اداء کولو بندیز ولګاوه چې په ریښتیا هم د حکومت د کمزورۍ او بې وسۍ ښکارندوینه کوي.

داسې بندیزونه نه زموږ د اسلامي او افغاني ارزښتونو سره سمون خوري او نه هم د اوسني نظام له کړنو او سیاسي تګلارو سره. په اسلامي او افغاني ټولنه کې د فاتحې پر ځای کول یوه وجیبه ده او موږ ورته د عقیدې پر بنسټ ژمن یو، په همدې خاطر دا د اسلامي او افغاني ارزښتونو خلاف یوه کړنه ده.

له بل پلوه که د حکومت له نظره د طالبانو د مشر- د فاتحې اخیسته او لمانځنه ناسم کار دی نو بیا دلته د هغو جنګسالارانو، قاتلینو، غلو، مافیایي څېرو، کاغذي او پروتوکولي قهرمانانو تلینونه او د مړینې مراسم ولې په شان او شوکت سره نه یواځې دا چې لمانځل کېږي بلکې د همدې حکومت لخوا ورته ځانګړې رخصتۍ او د ولسي- بودیجې څخه حمایوي مصارف هم ځانګړي کېږي.

د حکومت له لورې داسې او ورته توپیریز چلندونه دا په ډاګه کوي چې پدې نظام کې مشخصې کړۍ همېشه په خپله د خلکو، ملیتونو او قومونو تر مېنځ د تفرقې او نفاق باعث ګرځېدلې او هیواد ته یې ناوړې پایلې درلودلې.

په درنښت

د جګړې ضد ځوانان

**د ملا محمد عمر مجاهد په مړینه د جمعیت اصلاح د تعزیت پیغام**

بسم الله الرحمن الرحیم

قال تعالی: كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ... (آل عمران ۱۸۵)

د راپورونو پر اساس د طالبانو د اسلامي تحریک مشر ملا محمد عمر مجاهد آخند د ورپیښې ناروغۍ له امله وفات شوی دی. انا لله وانا الیه راجعون

جمعیت اصلاح افغانستان متوفی ته له الله تعالی څخه د ښښنې دعا کوي، کورنۍ، خپلوانو او دوستانو ته یې په دې اړه خپل تعزیت وړاندې کوي او هغوی ته له الله تعالی څخه د صبر غوښتنه کوي.

په دې کې شک نه شته چې ملا محمد عمر مجاهد د هېواد د تېرو دوو لسیزو یوه مهمه او مطرحه څېره وه او تاریخ به د هر بل شخصیت په څېر د هغه د کړنو په اړه خپل قضاوت کوي.

ملا محمد عمر مجاهد په خپله وروستۍ اعلامیه کې چې د کوچني اختر په اړه یې صادره کړې وه، د سولې د بین الافغاني خبرو ملاتړ کړی ؤ، چې له شک پرته یو پرځای او د سولې په لاره کې یو غوره ګام ؤ.

جمعیت اصلاح افغانستان هیله لري چې د ملا محمد عمر مجاهد په مړینه د سولې روانه پروسه ټکنۍ نه شي او د حالاتو نزاکت ته په کتلو سره د بین الافغاني خبرو او سولې لپاره اړوندې خواوې لا ګرندي ګامونه پورته کړي، ترڅو له دې غمځپلي هېواد نه د جګړې تغر ټول او ځای یې تلپاتې سوله، دایمي استقرار او ثبات ونیسي او پدې ترتیب زموږ مظلوم او دردیدلی ملت د ډاډ او هوساینې ساه واخلي.

وما ذالک علی الله بعزیز

جمعیت اصلاح افغانستان

جمعه، د ۱۳۹۴ هجري لمریز کال د اسد نهمه نیټه

# ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله

# د افغانانو هغه رهبر چې (دين) او (سياست) يې بېرته سره يوځای کړل

ليکنه: مولوي عبدالهادي (مجاهد)

## د دين او سياست بيلتون په اسلام کې ځای نه لري:

د اسلام مبارک دين د (دين) او (سياست) تر منځ بيلتون نه مني. د اسلام دين د الله تعالی له لوري د انسانانو په ټولو مادي او معنوي چارو کې د لارښوونې لپاره راغلی دی، او پيغمبر صلی الله عليه وسلّم همدغه کار په خپل مبارک ژوند کې عملي کړی دی.

په اسلام کې دا عقيده او تصور (دخيل) او (پردی) دی چې د دين (روحاني) او (معنوي) تمثيل دې يو جهت کوي، او د سياست، نظام او د ټولنې چارې دې بل جهت سمبالوي، بلکې دا دواړه د يوه قيادت کار او سره نه بېلېدونکې وظيفې دي، ځکه خو پيغمبر صلی الله عليه وسلّم او تر هغه مبارک وروسته راشدين خلفاء هم د مسلمانانو د (دولت) او (نظام) مشران ول، او هم د هغوئ ديني لارښوونکي او (د مسجد امامان.(

د اسلام په سياسي تاريخ کې چې کله هم اسلامي ټولنه په سياسي لحاظ له (مسجد او محرابه) رهبري شوې ده مسلمانان په قوت، سرلوړی او فتوحاتو کې اوسېدلي دي، خو چې کله هم د سياسي قيادت چارې د (مسجد او محراب) پر ځای د (ماڼيو) او (خېلونو) له لوري ترسره شوي نو په حتمي ډول مسلمانان د قوت او فتوحاتو پر ځای له ذلتونو، انحرافاتو، خپلمنځي جګړو او يا هم د دولتونو او نظامونو له سقوط سره مخ شوي دي.

د دين او د سياست د بېلتون نظريه چې په غربي اصطلاح (سيکولريزم) هم ورته ويل کېږي د (کليسا) د منحرف دين په خلاف د اروپا د (الحاد) د بغاوت زېږنده ده. دغې نظريې که له يوې خوا اروپايان د کليسا د استبداد په خلاف ودرول نو له بلې خوا اروپايي مستعمرينو اسلامي نړۍ ته د دې نظريې په راصادرولو په مليونونو مسلمانان هم د اسلامي شريعت له حاکميته محروم کړل.

## د دين او سياست د بېلتون نظريې له اسلامي نړۍ څه واخيستل؟

د عثماني خلافت په آخرو وختونو کې ـ د سلطان عبدالحميد خان له شخص او ځينو ملګرو په استثناء ـ چې کله د نظام او پوځي قيادت چارې د داسې سياسي او پوځي مسؤولينو لاسته ورولوېدې چې د (سيکولر) غرب له نظرياتو متأثر شوي وو نو په اسلامي نړۍ کې يې هم د دغې اروپايي (کفري نظريې) خپرېدو ته لاره هواره کړه، چې په نتيجه کې يې د شريعت حاکميت او د خلافت نظام له منځه لاړ، اسلامي نړۍ اروپايي دولتونو اشغال کړه، او په پای کې په ټوله اسلامي نړۍ کې داسې غرب پلوي سياسي نظامونه منځته راغلل چې د شريعت د حاکميت د مخنيوي او د دين او د سياست په بېلولو کې ټول سره شريک ول.

پر اسلامي نړۍ غرب پلوو مسلطو نظامونو نه يوازې دا چې په اسلامي نړۍ کې د شريعت د عملي کېدلو مخه ونيوله، بلکې دلته يې پر مسلمانو ولسونو د شوروي د (کمونيزم)، د غرب د (فاشيست ليبراليزم)، د امريکا د (پراګماتيزم) او (صليبيت) او د معاصرې اروپا د سياسي منافقت

(ماکیاولیزم) د ټولو جنایاتو تمرینونه وکړل. د اسلامي نړۍ د هېوادونو استقلالیت یې له منځه یووړ، او دغه هېوادونه یې ټول په سیاسي، نظامي، اقتصادي، فرهنګي او اجتماعي لحاظ په روسانو، اروپایانو او امریکایانو پورې وتړل.

## افغانستان ته سیکولریزم چا راووړ؟

د دین او د سیاست د بېلتون له (فتنې) څخه افغانستان هم په امان کې پاتې نه شو، او د اول ځل لپاره د دغه پردي فکر او نظام تیوري (محمود طرزي) چې له (سیکولر کمالیزم) او اروپایي نظریاتو څخه متأثره وو راوارده کړه، او بیا امان الله خان په افغانستان کې د زور، زندان، فکري ارعاب او استبدادي حکومت په زور د غې پردۍ نظریې د عملي کولو هڅې شروع کړې.

د محمود طرزي-چې غربیان یې په افغانستان کې د سیکولریزم پلار بولي-دغه مردار بوټي کرار کرار په افغانستان کې هم وده وکړه، چې نتیجه یې د امان ان الله خان د هغو (افساداتو) چې ده (اصلاحات) بلل او خلکو دی د هغو له امله (له دینه وتلی) وباله، د ظاهر شاه د مفسد نظام، د داوودخان د (دین دښمنه جمهوریت)، د کمونستانو (د ثور د کمونستي انقلاب) او د اوسنیو امریکایي پلوو (دیموکراتانو) د دیموکراسۍ په شکل کې راووته.

په افغانستان کې د دین او د سیاست د بېلتون نظریې او اسلامي شریعت ته ناملتزم حاکمیت دلته داسې وضعیتونه، نظامونه او قوانین رامنځته کړل چې یو ځل یې په افغانستان کې د امان الله په شکل کې د ترکیې د (مصطفی کمال) د (دین دښمنۍ) نخرې وکړې، بل ځل یې دا هېواد او ولس روسانو ته وروسپاره، او په دریم ځل یې دادی بیا دا هېواد د امریکا په مشرۍ د غرب د صلیبي ائتلاف په واک کې ورکړ.

افغانانو د غرب پلوو سیکولرانو د جنایاتو کفاره هر ځل د زرګونو او لکونو شهیدان په ورکولو ادا کړه، او لا یې تر اوسه هم خپله ټولنه د سیکولریزم د بې دینې مفکورې له جنایاتو او منفي تأثیراتو نده پاکه کړې.

## سیکولریزم وهلي مسلمانان:

په اسلامي نړۍ کې د سیکولرو واکمنو له لوري د (سیکولریزم) خپربدو نه یوازې دا چې (پر دین نه ولاړ) نظامونه رامنځته کړل، بلکې په اسلامي نړۍ کې یې په ملیونونو اسلام ته داسې منسوب خلک هم وروزل چې یوازې نومونه یې اسلامي دي او نور یې د ژوند تقریبا ټولې چارې له دیني ارشاداتو څخه د باندې د سیکولریزم، کمونیزم، لیبرالیزم او وضعي قوانینو مطابق عیارې کړې او روانې کړې دي. دغه د سیکولر فکر خاوندانو هر وخت ځان د اسلامي امت له افرادو ګڼلی خو کار یې تل د غرب لپاره کړی، او د اسلام پر ځای یې خپله وفاداري له غربیانو او غربي نظریاتو سره ښکاره کړې ده، او هم عملا د هغوئ په صف کې درېدلي دي.

په تېرې یویې پېړۍ کې د اسلامي نړۍ په ډېرو هېوادونو لکه د هند په نیمه وچه، ترکیې، عربي نړۍ او افغانستان کې ډېرو اسلامي شخصیتونو، اسلامي احزابو او سیاسي جهتونو د سیکولریزم د مخنیوي او د اسلامي نظام د رامنځته کولو لپاره نظریات وړاندې کړي، طرحې او کتابونه یې تألیف کړي، او د اسلامي سیاست او نظام دعواوې او شعارونه یې پورته کړي دي، خو کله چې په عملي ډول د سیاست او نظام ډګر ته ورداخل شوي او یا د حکومتونو برخه ګرځېدلي دي نو بیا دوئ هم د سیکولرانو ملګر تیا کړې ده او عملي سیاست او حکومتونه یې د سیکولریزم د اصولو، تګلارو او قوانینو مطابق چلولي دي، او د خپلو سیاسي او فکري انحرافاتو د تبریې لپاره یې اسلامي احکام تحریف کړي او یا یې بېلابېل تأویلونه ور کې کړي دي چې همدغه جریان لا اوس هم روان دی، او بده لا داده چې اوس همدغه خلک په ډېرو ځایونو کې د مجاهدینو په خلاف د غرب د صلیبي پوځي اېتلاف برخه دي.

## ملا محمد عمر مجاهد او د سیکولریزم د نظریې په خلاف عملي مبارزه:

خو د پورتني وضعیت په خلاف ملا محمد عمر مجاهد هغه یوازینی مسلمان رهبر وو چې هم د منبر او محراب له ډګره راپورته شو او هم یې خپل نظام د خالصو اسلامي اصولو مطابق جوړ کړ. هغه سیاست بېرته اسلامي کړ، په سیاست او نظام کې یې له سیکولریزم او نورو پردیو نظریاتو

سره (پیوندکاري) ونه منله. هغه یو ځل بیا ثابته کړه چې مسلمان هم په خپل شخصي ژوند کې مسلمان کېدی شي، او هم له معاصرو کفري نظریاتو او اصولو لیرې خپل نظام اسلامي کولی شي.

ملا محمدعمر مجاهد د یوه رښتیني مسلمان رهبر په حیث نه د کفري نړۍ له لویو ځواکونو مرعوب شو، نه یې له نوي نړیوال نظامه سترګې وسوې، نه یې (د ملګرو ملتو) او (د امنیت د شورى) د کفري قوانینو بنده ګۍ ومنله، نه له چا سره په کوم کفري (نظامي) او یا کوم (سیاسي) تړون کې شامل شو، نه یې د غرب او یا شرق په نزد د منل کېدلو په مقصد په خپل نظام کې پر دې معیارونه مراعت کړل، او نه هم د چا سیاسي، اقتصادي او نظامي بندیزونو او او تهدیدونو ته ور تسلیم شو.

هغه دا هر څه ځکه وکړل چې هغه (مسلمان) وو، او پر دې یې عقیده درلوده چې لکه څنګه چې د (مسلمان) دین او عقیده اسلامي ده همداسې باید د هغه (سیاست) او نظام هم اسلامي وي. ځینې (پر دې پالو) او لنډ فکره خلکو ته به کېدی شي د هغه له لوري د د دغه ډول دریځ خپلول د هغه ساده ګي او د معاصرې نړۍ له سیاسي وضعیت او حالاتو ناخبري ښکاره شي، خو حقیقت دا دی چې هغه ساده او ناخبره نه وو، بلکه هغه یو رښتینی مسلمان رهبر وو چې د اسلام په حقیقي روحیه سمبال او یو کلک (شعوري مسلمان) وو چې په هېڅ صورت یې په اسلام او اسلامي سیاست کې (پیوندکاري) نه منله. زه د داسې یو چا په حیث دا خو جرېنې نه لیکم چې هغه یې نه وي لیدلی او نه یې وي پېژندلی. ما هغه مرحوم له نیږدې لیدلی وو، او د هغه له فکر او نظریاتو مې له ډېرې نیږدې ځان خبر کړی وو.

د ملا محمد عمر مجاهد د فکر او د اسلامي سیاست د خالصتوب راز په دې کې وو چې هغه د اوسنیو نورو سیاستمدارانو په څېر د معاصر غرب د سیاسي فلسفې د فیلسوفانو نظریات نه لوستي وو او نه یې باور پرې درلود. د هغه د عقیدې او سیاسي تفکر سرچینه د (جان جاک روسو)، (مونتسکیو)، (هوبز)، (جان لاک)، (سپینوزا)، (میرابو)، (داروین)، (کانت)، (سارتر)، (ماکیاولي) (فروېد)، (مارکس)، (نیچه)، (چرچل) او د (فوکویاما) له نظریاتو نه وه، بلکه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلّم او د صدیّق، فاروق، علي، عثمان، سلمان، ابوذر، بلال، خالد او ابن عبدالعزیز رضي الله تعالی عنهم کیسې او رېدلې وې، او د هغوئ ساده خو پوخ او اصیل فکر یې خپله تګلاره ګرځولې وه. او له همدې امله یې تر وروستۍ سا د شریعت التزام ته د د نیا د خلکو پر توصیو او فرمایشاتو ترجیح ور کړه.

د افغانستان، اسلامي فکر، او اسلامي سیاست لپاره د ملا محمد عمر مجاهد څو لوی کارونه:

ملا محمد عمر مجاهد د یوه مسلمان سیاسي رهبر په حیث په خاص ډول په افغانستان او په عام ډول په ټولې اسلامي نړۍ کې پر اسلامي فکر او سیاست لوی او ژور تأثیرات پرېښودل چې اغېزې به یې په ټولې نړۍ کې د وخت پر تېرېدلو لانورې هم ښکاره شي. ځینې خلک ښایي زما دې تحلیل ته د یوه فکري مجازفت او لویې ښکارووني په نظر وګوري او داسې فکر وکړي چې زه به د مرحوم ملا محمد عمر مجاهد د فکر او اقداماتو تأثیر د هغو تر حقیقي اندازې د پور ته ښکاره کولو هڅه کووم، خو دغه خلکو ته باید وریه یاد کړم چې یو وخت دغه ډول خلکو (سید قطب)، (عبدالله عزّام) او (اسامه بن لادن) هم یوازې افراد ګڼل، او د هغوئ افکار و سیاسي او نظامي اقدامات یې سطحي ګڼل، او د هغو د تأثیر ساحه یې هم محدوده ګڼله، خو وروسته بیا نړۍ ولیدل چې د همدې (محدودو افرادو) د افکارو او اقداماتو په نتیجه کې په ټولې نړۍ کې داسې یو مجاهد نسل او یوه سیاسي او جهادي تیوري رامنځته شوه چې ټوله کفري نړۍ یې ستومانه کړه، ستړ پوځي ځواکونه یې ونګول، او په داسې یوه ځواک بدل شول چې ټوله نړۍ یې له مقابلې عاجزه ده.

هغه لوی کارونه چې ملا محمد عمر مجاهد د افغاني اسلامي سیاست په بهیر او د اسلامي فکر په مجال کې تر سره کړل د هغو له جملې څخه یې ځینې په لاندې ډول یادولی شو:

### ۱. د روسانو او کمونیزم په خلاف د افغانانو د ستر جهاد د نتیجې له ضائع کېدلو ژغورل:

د روسانو او کمونستانو په خلاف د افغانانو ستر جهاد چې د اسلامي نړۍ په زرګونو نورو مسلمانانو هم ور کې قرباني ورکړې وې د دې لپاره وو چې افغانستان د روسانو او کمونستانو له تسلّطه آزاد شي، او په دې خاوره کې اسلامي نظام جوړ او شریعت ور کې حاکم شي. خو د بېلابېلو نړیوالو اوسیمه ییزو توطیو او د ډېرو جهادي تنظیمونو د رهبرانو د انحراف او غلطو تصامیمو او اقداماتو له امله نه یوازې دا چې په هغه وخت کې دغه ارمان پوره نه شو، بلکې نیږدې وه چې ټولې قربانۍ ضائع او او د افغانستان ارضي تمامیت هم له منځه لاړ شي.

په هغه وخت کې د داخلي شخړو او د جهادي صف د انحراف له امله پر افغانستان داسې یو وحشت حاکم وو چې خلکو ته یې د چنګېز د وخت وراني او وحشتونه وریادول. د هماغو وحشتونو او خپلمنځي بې رحمو جګړو له امله افغانان او افغانستان د لویې تباهۍ مرحلې ته ور رسېدلي وو، مجاهدین بدنامه شوي ول، اسلامي تنظیمونو خپل مصداقیت له لاسه ور کړی وو، او د جهاد بیرغ لوېدلی وو.

له پورتنیو ټولو ناخوالو سره د مقابلې په مقصد ملا محمد عمر مجاهد په خپل جهادي او اصلاحي پاڅون سره نه یوازې دا چې افغانستان له لویې تباهۍ د خلاصون لوري ته سوق کړ، بلکې یو ښه نظام یې هم جوړ او شریعت یې ور کې تر خپلې وسعې تطبیق کړ، او د جهاد لوېدلی بیرغ یې هم ښه لوړ بېر ته راپور ته کړ.

د هغه له لاسه دا هر څه په تصادفي ډول نه دي تر سره شوي، بلکې د دې هر څه لپاره یې همداسې عزم درلود. ما (د دې کرښو لیکوال) ته د ۲۰۰۱م میلادي په اولو میاشتو کې یوه ورځ د طالبانو د (امر بالمعروف او نهي عن المنکر) د وزارت وزیر شهید مولوي صاحب محمد ولي د ملا محمد عمر مجاهد د عزم د هغو ورځو کیسه کوله چې دی د خپلې نوې پیل کړي مبارزې په دویمه او یا دریمه هفته کې وو، او په هغه وخت لا نه رهبر او نه هم امیر المومنین وو. مولوي محمد ولي مرحوم راته وویل: ((ما د ملا محمد عمر له مدرسې لږ لیرې په یوه مسجد کې طالبانو ته درس وایه چې د قندهار ـ هرات پر سرک مې د ټوپکیانو پر یوه ځنځیر د جګړې د ټکانو آوازونه واورېدل، چې پوښتنه مې وکړه نو راته وویل شول چې ملا محمد عمر د ظالمو او مفسدو ټوپکیانو په خلاف جګړه شروع کړې ده. ما هم کتاب بند کړ او له خپلو څو طالبانو سره له هغه سره یوځای شوم. کله چې یوه ورځ زموږ جګړه د قندهار ښار ته د غرب له لوري ور نیږدې شوه یوه ورځ مو تر ماز دیګره له ټوپکیانو سره پداسې ځای کې سخته جګړه وشوه چې زموږ او هغوئ تر منځ یو پول وو، ماښام چې جګړه ودرېده نو زه او ملا محمد عمر آخوند په یوه خزه کې وو. ما دا تشویش درلود چې موږ دا دوه کسه به تر سهاره دلته مقاومت وکړای شو او که نه په شپه کې به مو خدای مه کړه دښمن ونیسي او یا بل څه راپېښ شي. زما په ذهن کې خو دا فکرونه وو خو د ملامحمد عمر آخوند د عزم او فکر دنیا بیا بېله وه. ملا محمد عمر آخوند په همدې له وېرې او تشویش ډکې شپې کې راته ویل: ((مولوي صاحب! دا جګړه مو لنډه او د یو څو ورځو جګړه نه ده، او نه به یې د کندهار پر نیولو بس کوو. موږ به ان شاء الله تعالی دوامداره جهاد کوو، کندهار به نیسو، بیا به ټول افغانستان لدې مفسدینو آزادوو، اسلامې حکومت به جوړوو، او بیا به شریعت ور کې نافذوو، دا ډېره اوږده لار ده، وېرې او ستومانۍ ته به په زړه کې ځای نه ور کوو))

مولوي محمد ولي صاحب راته ویل: ما چې په هغې سختې او له وېرې ډکې شپې کې د ملا محمد عمر آخوند دا خبرې او په ظاهره ډېر سخت او نه تر سره کېدونکي عزائم اورېدل داسې راته ښکارېدل لکه دي چې دی راته وایي چې اسمان ته به پور ته کېږو او... خو دا دی زه اوس وینم چې ملا صاحب د الله تعالی په فضل او نصرت خپل ټول عزائم تر سره کړل. د فساد ټغر ټول شو، اسلامي حکومت قائم شو، او شریعت هم ور کې نافذ شو.((

حقیقت د ادی که د الله تعالی فضل او احسان او بیا د ملا محمد عمر مجاهد پاڅون نه وای نو نن به نه واحد افغانستان وای، نه به دلته دغه ډول مجاهدین ول، نه به امریکا او ناټو ماتې خوړلې وه، نه به مو ولس د آزادۍ دغه ډول روحیه درلوده، او نه به مو په نړۍ کې د جهاد او سر لوړۍ بېرغ رپېده. بلکې د کموستانو هغې دعوی به د ټولو مجاهدینو په هکله صدق کړی وو چې د څو غدّارو تنظیمي رهبرانو په حق کې یې وکاوه، هغه چې ویل به یې جهاد او مجاهدین یوه امریکایي پروژه ده چې د (ثور د انقلاب!!؟) په خلاف یې په کار اچولې ده. که ملا محمد عمر مجاهد د امریکا او د هغې د

ملګرو په خلاف د جهاد بيرغ نه واې پورته کړی، او د سيکولريزم په خلاف يې هم داسې جهاد نه واى کړى لکه د کمونيزم په خلاف يې چې وکړ، نو خامخا به مو د کمونستانو پيغور پر غاړه وړ.

## ۲. د (ملا) سياسي کول او حاکميت ته رسول:

له تېرې اوږدې زمانې راهيسې په اسلامي نړۍ او په افغانستان کې عالمان او متدين خلک د سياست، نظام او حاکميت له صحنې وېستل شوي او د ټولنو د سياسي، عسکري او اجتماعي قيادت چارې له دين څخه ناخبرو او يا له دين څخه ياغي سياستوالو، مستبدو بادشاهانو، په روسانو پورې تړلو کودتايي انقلابيانو او يا غرب پلوو ليبرال فاشستانو په لاس کې نيولې دي. دغه ډول حکامو نه يوازې دا چې د اسلامي نړۍ په هېوادونو کې داسې نظامونه او قوانين رامنځته کړل چې د هغو په توسط يې مسلمان ولسونه د ذلت، اختناق، سياسي استبداد او اجتماعي فساد په وضعيت کې وساتل، بلکې له دې ورېږې چې نظامونه او قوانين يې له زوال سره مخ نشي په ټولنو کې يې د مصلحينو، علماوو، قومي مخورو مسلمانو دعوتګرو، مسلمانو مفکرينو او د جهادي فکر او تګلارې د خاوندانو په خلاف بې رحمه جګړې او سياستونه هم په کار واچول.

دغو له دين څخه ياغي او پردي پالو حکامو د اسلام د حاکميت لپاره د کار کوونکو په خلاف د جګړې، تهديدونو، فشارونو او د هغوئ د کار او تأثير د مخنيوي ټول وسائل لکه وژنې او اعدامونه، زندانونه، تبعيدونه، منفي تبليغات او سايکالوژيکې جګړې او نور ډېر ميتودونه په کار واچول چې د هغو په نتيجه کې يې نه يوازې دا چې علماء او د دين د حاکميت لپاره کار کوونکي له نظام او حاکميته ووېستل، بلکې تر ډېره حده يې له ټولنو او سياسي جريانونو هم تجريد کړل، او د هغوئ ځای يې د کمونيزم، سيکولريزم، نشنليزم، او د هوی او هوس بنده ګانو ته خالي کړ.

پورتنی وضعيت د افغانستان په شمول پر ټولې اسلامي نړۍ حاکم وو، او د دې پر ځای چې اسلام ته منسوب سياسي احزاب او جريانونه د خالصو اسلامي انقلابي اقداماتو او جهادي ستر اتېژۍ له لارې د دې وضعيت د بدلون په مقصد د جدّي کار لپاره خلک وروزي او له معاصر جاهليت څخه فاصله ونيسي متأسفانه هغو هم په بېلابېلو شکلونو د معاصر جاهليت (ديموکراسۍ) له بهيرونو سره پيوند واخيست، او د دې پر ځای چې د مجاهدينو او مسلمانو انقلابيانو ملاتړ وکړي د حکومتونو، پارلمانونو، او نورو سيکولرو جوړښتونو او مؤسساتو په چوکاټ کې يې د ځان لپاره ځايونه ولټول.

خو د اوس وخت د اسلامي سياسي احزابو او جريانونو برعکس ملا محمد عمر مجاهد له حاکم وضعيت سره جوړه ونه کړه، بلکې د سيکولرې نړۍ ټول (پر دين نه ولاړ) موازين او معيارونه يې له پامه وغورځول، او په فطري ډول يې د نظام او سياست د چارو واګې بېرته علماوو او مجاهدينو ته وروسپارل. ملا محمد عمر مجاهد (ملا) بېرته سياسي کړ، او له ډېرې لوېې دروازې يې بېرته د سياست او حاکميت ډګر ته ور دننه کړ، چې په خلاص لاس په ټولنه کې د الله تعالی دين نافذ کړي.

ملا محمد عمر نظام او ادارې له کمونستو او سيکولرو عناصرو پاکې کړې. هغه له ملا او مجاهد څخه بيا امير، وزير، ديپلومات، والي، پوځي او امنيتي قومندان، مدير، قاضي، څارنوال، ولسوال، استاذ، سياستوال، ليکوال، اديب او مبصر جوړ کړ. هغه د ملا او ټولنې تر منځ پرې شوې رابطه بېرته داسې محکمه کړه چې بېرته پر پرېکولو يې د سيکولريزم د پلويانو زور ونه رسيد که هر څو يې بېلابېل وسائل په کار واچول.

هغه بيا (ملا) ته د سياست او نظامدارۍ عملي تمرين ورکړ، او په سياسي، فکري، او پوځي لحاظ د امريکا په ګټه (يوقطبه) شوې نړۍ يې بېرته داسې (دوه قطبه) کړه چې يو قطب يې د (سيکولر نظرياتو) له خاوندانو جوړ دی، او بل قطب (ملا) او د هغه (نظريه) تشکيلوي.

البته د ملا محمد عمر مجاهد له لوري د (ملا) او (طالب) د سياسي کولو په اړه د دې يوې ملاحظې يادول ضروري دي او هغه دا چې د طالبانو په بهير کې خو (ملا) په عملي ډول د سياست ډګر ته ورننوت خو افسوس چې د اسلامي سياست معاصرو علومو، د کفر او کمراهۍ د معاصرو ډولونو پېژندنې، د اسلامي عقيدې معاصرو فکري مفرداتو، له ټولنې سره د امثل اسلامي تعامل معارفو او د نړۍ پر ژبه د پوهېدلو او د نړيوالو د مخاطبولو معاصرو ادبياتو لا تر اوسه د ملا او طالب تعليمي نصاب او د هغه د مدرسې ماحول ته لاره نه ده پيدا کړې. که طالب او ملا د تعليم، نصاب او د هغه د

مدرسي ماحول همداسې پاتې شي نو داوېره شته چې د ملا محمد عمر مجاهد فکر او تګلاره به د راتلونکو نسلونو لپاره يو (فکري مکتب) نشي، بلکه د افغاني تاريخ په پاڼو کې به يوازې د (يوې زريني حادثې) په شکل کې پاتې شي او بس. نو په کار ده چې د طالب د سياسي او جهادي بهير فکري او تعليمي مسؤولين د دغه ارث د خوندي کولو او تخليد لپاره پدې ډګر کې له خپل سطحيته راووځي او مطلوب اقدامات تر سره کړي.

۳. طالب او محصل ته جهادي روحيه ورکول او له دين څخه د دفاع په صف کې د هغوئ درول:

غربي ډوله تعليم او تعليمي نظام په اسلامي نړۍ کې خلک له معلوماتو سره آشنا کړل، خو له (تدين) او معنويت څخه يې محروم کړل. دې ډول تعليم خلکو ته د دنيا د جوړولو او د آخرت خرابولو فارمولې ورزده کړې. غربي ډوله تعليمي نظام او نصاب د مسلمانانو نويو نسلونو ته د وسلو او وسائلو د جوړولو هنر ورزده کړ، خو له اسلام او خپلې خاورې څخه د دفاع په لار کې يې د خپلو جوړو کړو وسلو د استعمال روحيه او اراده ور څخه سلب کړه.

غربي ډوله تعليمي نظام او روحيې په اسلامي نړۍ کې د غرب لپاره په مليونونو داسې وفاداره ماهر او چالاک غلامان وروزل چې تر غربيانو دوئ ډېر د غرب د ګټو لپار مخلص او د غربيانو د پلانونو عملي کوونکي دي، ځکه خو د شرق فيلسوف او ستر غرب پېژندونکی علامه اقبال هم د غربي ډوله (مکتب) او د هغه د شاګردانو رول په اسلامي نړۍ کې داسې تشخيصوي:

مکتب از تدبير او ګير د نظام  تا به کام خواجه انديشد غلام

انګرېز د مکتب نظام ته داسې يو تدبير نيولی چې له هغه څخه فارغېدونکي فکري غلامان تر خپله انګرېزانو هم د انګرېزانو کارونه ښه ترسره کوي.

د غربي ډوله تعليم اثر پر اسلامي نړۍ داوشو چې څومره چې د دې ډول تعليم مکتب او پوهنتونونه ډېر شول په هماغه اندازه له اسلامه د نوي نسل بې خبري هم زياته شوه. په اسلامي نړۍ کې که دغه ډول تعليم يافته خلک هر څومره ډېر شول اسلام او آزادۍ ساتنې ته يې هيڅ ګټه ونه کړه، او دا ځکه چې دا خلک تل کله د (روښانفکرانو!!؟)، کله د (کمونستانو)، کله د (لېبرالانو) او کله هم د (منځلارو) په شکل کې د دښمن په صفکې درېدلي دي. غربي ډوله تعليم دوئ د غيرت او دفاع له فطري حسه بې برخې کړي، ځکه خو علامه اقبال دې تعليم ته په لاندې نظر ګوري:

من آن علم و فراست با پر کاهی نه مي ګيرم  که از تيغ و سپر بيګانه سازد مرد غازی را

زه هغه پوهه او هوښيارۍ د بوسو په يوې خځلې هم نه اخلم چې غازي سړی له تورې او سپره پردی کوي.

ملا محمد عمر په دغه ډول يوه (وبا وهلې) سياسي، فکري او فرهنګي وضعيت کې حاکميت ته ورسېد، خو هغه او د هغه ملګرو له دغه وضعيت سره جوړه ونه کړه، بلکې په پراخه پيمانه يې د مکتب، مدرسې، پوهنتون او دارالحفاظ شاګردان داسې د ايمان، جهاد، قربانۍ او فداکارۍ له روحيې سرشاره کړل چې له هېچا يې وېره ونه شوه، او د داسې يوه نړيوال پوځي ائتلاف په مقابل کې لويه جګړه ورباندې وګټله چې تر پنځوسو د زياتو هېوادونو پوځونه ور کې شامل ول. هغه په خپل قول او عمل د اسلامي نړۍ د ځوانانو په نفسونو کې د جهاد او آزادۍ غوښتنې داسې ساوړپو کړه چې اوس يې د نړۍ ټول سياسي او فکري جادوګر له آرامولو عاجز دي، او دا سلسله به لانوره هم ان شاء الله اوږدېږي او پراخيږي.

۴. د يوه رښتيني مسلمان حاکم نمونه وړاندې کول:

مسلمانانو له اوږدې مودې راهيسې د يوه واقعي او رښتيني مسلمان حاکم نمونه نه ده ليدلې. او دا ځکه چې د اسلامي نړۍ د شلمې او يو ويشتمې پېړۍ تقريبا ټول حاکمان هغه خلک دي چې يا يې د اروپا، روسيې، او امريکا په مکتبونو او پوهنتونونو کې درس ويلی، يا يې په اسلامي هېوادونو کې د غربيانو او مسيحي مبشرينو له لوري له جوړو شويو تعليمي مؤسسو فارغ شوي دي، او يا هم هغه خلک دي چې په غرب پالو او سيکولرو کورنيو او چاپېريالونو کې رالوی شوي دي او دين ته هيڅ التزام نه لري، او د ديندارۍ هم يوازې دومره تظاهر کوي چې خپل محکوم ولسونه ورباندې تېرباسي.

د اسلامي نړۍ اوسني حاکمان په فکري لحاظ سیکولر، په سیاسي لحاظ د (ماکیاولیزم) د مکتب پیروان چې د خپلو ګټو لپاره هر کار روا بولي، د عزائمو او ارادو په لحاظ په د لویو کفري دولتونو ملګري او تابع، د شکل او صورت په لحاظ د غربیانو فوټو کاپي، له خپلو ولسونو سره د تعامل په لحاظ غله، مستبد او درواغجن، د فرهنګ په لحاظ د خپل فرهنګ دښمنان او د پردیو فرهنګونو تمثیلوونکي دي.

دغه حاکمان واک ته هم یا د خانداني موروثیت، یا د کودتاګانو، یا د پردیو لخوا په تحمیلي شکل او یا هم د غربي دیموکراسۍ د هغو انتخاباتو له لارې رسېږي چې په هغه کې د رأیې ور کوونکو دین، پوهې، عقل، تجربې او نورو استعدادونو ته نه کتل کېږي، بلکې یوازې یې د حېواناتو په څېر سرونه شمېرل کېږي، او هر چا چې ډېرې رأیې حاصلې کړې که یې په هر شکل حاصلې کړې وي د حاکمیت مستحق ګڼل کېږي. پدې ډول د اسلامي نړۍ تقریبا ټول حکام له نااسلامي لارو واک ته رسېږي.

خو ملا محمد عمر مجاهد د اوسنۍ زمانې د حکامو بر عکس د یوه رښتیني مسلمان حاکم نمونه وو. هغه د ملت په منځ کې له مسجد او محرابه راپورته شوی متدین او متشرع شخص او د دین په تقاضا او روحیه یوه رهبر وو. هغه هم په شریعت پوهېده او هم یې نافذاوه. د مظهر او صورت په لحاظ له شریعت او افغاني اصیل دود سره برابر وو، تل یې افغاني لباس اغوست او پګړۍ یې پر سر کوله، ډېر وخت به یې داسې پګړۍ پر سر او جامې پر تن وې چې له ډېرو وینځلو او اغوستلو به یې رنګ بدل شوی وو. نه یې تر پایه خپل کور پیدا کړ او نه یې ځمکې او شتمنې.

هغه سره لدې چې یو قوي رهبر وو هر وخت یې خپل تصامیم د شریعت له علماوو څخه د پوښتنې او له خپلو ملګرو سره د مشورې په نتیجه کې نیول، او د خپل حاکمیت په وخت کې به یې هره چهارشنبه له مشرانو او مسؤولینو سره مشوره درلوده. ملا محمد عمر مجاهد قوي حاکم وو خو ژوند یې د مترفینو نه وو، هغه په ماڼیو کې نه اوسېده، تل له مجاهدینو، علماوو او د نظام له مسؤولینو سره په طبیعي ژوند کې اوسېده. هغه د خپل نظام قوت د اسلامي شریعت په تطبیق او د خپل ولس په پاللو کې لیده. هغه کله هم د خپل نظام د تقویې لپاره کفري هېوادونو ته د نېږدې کېدلو کوښښ او له هغوئ سره د تړونونو د امضاء کولو هڅه ونه کړه.

ملا محمد عمر مجاهد په فکري لحاظ په اسلامي معنی د امت پر وحدت باور درلود، او د خپل توان تر حده یې د امت د عملي یو کولو هڅه وکړه. هغه د نړۍ ډېرو جهادي ډلو او لویو شخصیتونو ته د خپل نظام په غېږ کې نه یوازې داچې ځای ورکړ، بلکې هغوئ ته یې وسلې وسائل او د هغوئ د مهاجرینو لپار د عزتمن ژوند امکانات هم برابر کړل، پدې ډګر کې هغه د (لا یخافون في الله لومة لائم) عملي مصداق وو، او پدې اړه یې د شرعي حکم او مسؤولیت په مقابل کې د هېچا خاطر داري ونه کړه، که هر څومره ور ته دا کار په درانه قیمت هم تمام شو.

د دې لپاره چې هغه او د هغه نظام د امت د وحدت عملي دلیل وړاندې کړی وي کله یې هم نظام له مسلمانو مجاهدینو او مهاجرینو د د ویزې او پاسپورټ غوښتنه ونه کړه، او داځکه چې د اسلامي امت د وحدت او د مسلمانانو د ورورلۍ د عقیدې په تله کې دې شیانو ارزښت نه درلود، او همدا دلیل وو چې د نورې نړۍ ډېرو مخلصو مسلمانانو هم همدی خپل امیر او رهبر ګاڼه. د ده په خپله اصطلاح)) که یې پښه په خپله پایڅه کې نه وای نښتې)) نو په دې مجال کې به یې مسلمانانو ته نور هم ډېر څه کړي وو. داچې هغه د نورو انسانانو په څېر یو انسان وو، او له ډول ډول داخلي او خارجي مشکلاتو سره هم مخ وو، نو طبیعي ده چې د خپلو ډېرو ښېګڼو تر څنګ به یې ډېرې نیمګړتیاوې هم درلودې. خو په یقیني ډول هغه د اسلامي نړۍ تر ټولو مشرانو شریعت ته ډېر ملتزم او ښه مدبر رهبر وو.

په پای کې په داسې حال کې چې پر وفات یې ډېر غمجن یم ده ته له غفور او کریم رب څخه د مغفرت غوښتنه کووم، او کورنۍ او ملګرو ته یې تعزیت وړاندې کووم، د اسلامي فکر او د جهاد د فکري او فرهنګي سنګر له ساتونکو په ټول احترام او جدّیت هیله کووم چې د دې عظیم انسان د ژوند د بېلابېلو اړخونو په راسپړلو او پر اسلامي فکر او سیاست د هغه د تأثیر په برجسته کولو خپل فرهنګي مسؤولیت اداکړي، او د دې لوی شخصیت تاریخ مخکې له هغې تدوین او توثیق کړي چې د کینه ګرو غربي لیکوالو او مفکرینو له لوري په مسخ شوې او تحریف شوې بڼه نړۍ او راتلونکو نسلونو ته وړاندې شي. (رحمه الله تعالی رحمة واسعة، و تغمّده في واسع جنانه) آمین

# هغه شخصیت چې ژوند او وفات دواړو یې

# مسلمانانو ته د وحدت پیغام پرېښود!

شاهد (غزنیوال)

ملامحمد عمر مجاهد چې کولای شو د پنځلسمې هجري پیړۍ مجدد یې وبولو پرنورو ځانګړتیاوو سر بیره د مسلمانانو ترمنځ د اسلامي یووالي یو سمبول ګڼل کیده.

نوموړي د طالبانو په نوم د اسلامي تحریک د تأسیس له پیله د افغان ولس د وحدت او یوالي شعار پورته کړ، تنظیمي او ګوندي تفرقې یې ناسمې وبللې او د ولس له منځه یې د هغوی د لیري کولو هڅې پیل کړې.

هغه مهال چې افغان ولس د اسلامي جهاد په برکت تازه د شورویانو له اشغاله خپلواکي ترلاسه کړې وه په غیر ارادي ډول د داخلي جګړو او تنظیمي اختلافاتو ښکار شوی و له خدای تعالی پرته هیچاته دا تمه نه کیده چې ځوریدلي افغانان دي د دغو خونړیو خپل منځي جګړو او تنظیمي اختلافاتو له شره وژغوري.

په دغسي یوه خطرناک وخت کې چې د افغان مجاهد ولس د قربانیو او سر ښندنو په مټ یوه قطب شوې غربي نړۍ د افغانستان د ټوټه کولو او ویشلو سازشونه جوړول ملامحمد عمر مجاهد د هیواد په جنوب لویدیځ کندهار ولایت کې د طالبانو په نوم د اسلامي تحریک بنسټ کیښود.

نوموړي د لوی خدای په نصرت بیا د خپل ځانګړي اخلاص او ټینګ عزم په مټ وکړای شول دافغانستان د تجزیې په اړه د دښمنانو ټول شوم پلانونه خنثی کړي.

ګډوډۍ او بي نظمي له منځه یوسي او په ډیر کم وخت کې د افغانستان په ۹۵٪ خاوره کې د شریعت تر سیوري لاندې ډاډمن امنیت تأمین کړي.

که د مرحوم امیر المؤمنین په لاس تر سره شوې کارنامې ټولې دلته لیکل غواړو ښایي ډیر وخت او ډیره اوږده لیکنه وغواړي. ځکه د نوموړي د همدغه اسلامي تحریک ځانګړتیا یواځې د امنیت تأمینول نه بلکې د هغه ترڅنګ د شرعي احکامو تطبیقول، د هیواد په ټولو قضایي، تقنیني او تنفیذي اداراتو کې مطلوب اصلاحات راوستل هم ول.

د امیر المؤمنین د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال په افغانستان کې د شرعي حدودو د تنفیذ ترڅنګ په نړۍ کې د مستضعفو مسلمانانو له حقوقو دفاع کول او د هغوی مظلومو افرادوته د خپلې واکمنۍ تر سیوري لاندې پناه ورکول هم میسر ول. د مرحوم امیر المؤمنین شخصیت د ټولو هغو نیکو مواصفاتو متمثل و چې یو مسلمان قائد یې باید ولري . تقوی ، تواضع ،خود ګذري ، ایثار او خواخوږي یې د ژوند لازمه ځانګړ تیاوې ولې.

د نوموړي د حاکمیت په مهال مسلمانانو د نړۍ په کچه په افغانستان کې یواځینی داسې حکومت درلود چې نړیوالو مستبدینو د ظالمانه اوامرو او غوښتنو په مقابل کې یې د اسلامي نخوت او سرلوړي له مخې د نه ویلو توان درلود. د ده د فاتحانه قیادت په مهال د لومړي ځل لپاره د کفری نړۍ تبشري منحرف منصرین ( د شلترنو مسیحي مؤسسې کارکوونکي) د تنصیر منحرفي عقیدې ته د دعوت په جرم ونیول شول، د زندان تورو تمبوته واچول شول او په شرعي محکمې کې د خپلو ناروا اعمالو د ترسره کولو په جرم مجازات کړای شول.

د ده د شرعي واکمني په مهال شرعي حدود نافذ او مسلمانانو یې په ټولنې کې د تنفیذ مثبت اثرات ولیدل. او بالآخره د ده د شرعي واکمنۍ په مهال په هیواد کې په ښکاره د شرک، بدعتونو اونورو منکراتو په خلاف په دولتي سطحه هلې ځلې پیل شوې .

ریښتیاهم د امیر المؤمنین په قیادت کې د اسلامي امارت د ۷ کلنې واکمنۍ په مهال په ډیرو سختو شرائطو او اقتصادي ناخوالو کې د ژوند په مختلفو برخو کې د توقع خلاف ډیر کار وشو. له اداري اصلاحاتو نیولې ، تر قضایي عدلي، فرهنګي اقتصادي او تعلیمي سمونو پوري د نظام په ټولو برخو کې مطلوب اصلاحات رامنځته شول ، په عمراني برخه کې په ډیرو نامساعدو اقصادي شرائطو کې ډیر پرمختګ وشو ، د حکومتي اداراتو په بیا فعالولو کې دومره کار وشو چې د هیواد په ډیرو لیري پرتو سیمو کې ټول حکومتي ادارت (ولسوالۍ) او علاقه دارۍ په مکمل ډول فعاله او دخپل فعالیت په سیمه یې پوره کنټرول درلود چې داخبره دمعاصر افغانستان په تیر ۲۷۶ کلن تاریخ کې ساری نه لري.

سره له دې چې د امارت ټوله ۷ کلنه واکمنۍ یوه ورځ هم بې جګړې نه ده تیره شوې خو د جګړې له کرښو رادیخواته به په خارق العادته ډول امنیت تأمین او د هر ډول بې نظمي مخه نیولې شوې وله. د یوه مسلمان ځواکمن قائد په حیث د ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله ژوند او اسلامي واکمني ځینې داسې ځانګړ تیاوې لري چې د تبع تابعینو له عصره را پدیخوا بیا د بل مسلمان حاکم په ژوند کې هغه نه دې لیدل شوې.

د دغو ځانګړ تیاوو له جملې څخه یوه هم داده چې د ملامحمد عمر مجاهد قیادت په نړیواله کچه د جهادي صف لارویانو منلی له هغه سره یې بیعت کړی او د ده تر قیادت لاندې د نړۍ له ترټولو لوی کفري ایتلاف سره یې مقابله کړې.

کوم صلیبي ایتلاف چې د ملامحمد عمر (مجاهد) د واکمني د نړولو لپاره د صلیبي امریکا په مشرۍ جوړ شو ښایي د احزاب (خندق) له جګړې وروسته بیا د هیڅ اسلامي هیواد او اسلامي قیادت پرخلاف دومره لوی نړیوال کفري ایتلاف نه وي تشکیل شوی.

خو ملامحمد عمر (مجاهد) چې د دغه صلیبي ایتلاف اصلي هدف و نه دهغه له زوره وډار شو او نه یې له خپله موقف نه تنازل وکړ ، بلکي دالله تعالی د دې قول مطابق چې فرمایي :

الَّذِينَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَاناً وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ (۱۷۳)

په خپل اسلامي موقف باندې په ثابت پاتې کیدلو سره یې له دغه ټول راټول شوي صلیبي ایتلاف سره مقابله پیل کړه ، نوموړی په دې مقابله کې د الله په نصرت او خپل بریالیتوب باندې بشپړ باور درلود او هغسې وهم شول چې هماغه لوی مستکبر طاقت د ملامحمد عمر د تش لاسو مجاهدینو په قربانیو اوسر ښندنو سره ناکام او د مقابلې په ډګر کې شرمنده شو.

د ملامحمد عمر (مجاهد) بله ځانګړتیا داوه چې د ده تر حاکمیت لاندې مجاهدین د ده تر ژونده پورې همداسې یو موټی او متحد پاتې شول ، سره له دې چې دښمنانو دهغوي دمتفرق کولو لپاره ډیرې هلې وکړې خو د لوی خدای په فضل او د ده د حکیمانه قیادت په برکت سره د دښمن دغه ټولې هلې ځلې ناکامه او جهادي صف تر اوسه همداسې متحد او یوموټی پاتې شو.

تر ټولو مهمه مشخصه یې دا چې لکه چې ژوند یې د مسلمانانو لپاره د وحدت او یووالي سمبول و وفات یې هم د ټولو مسلمانانو لپاره د وحدت او یووالي پیغام پریښود.

د ملامحمد عمر ( مجاهد) په وفات باندې د نړۍ ټولو مسلمانانو او دجهادي تنظیمونو مشرانو خپل تأثر ثرګند او داسلامي امارت له مجاهدینو سره یې خپل مواسات او غمشریکي ښکاره کړه .

په دغو متأثرینو کې داسې کسان هم ول چې له مرحوم ملامحمد مجاهد سره په ژوندکې د هغه له ځینو کړنو سره سخت مخالفت درلود ، خو په وفات کې یې له نوموړي سره خپل ټول نظري اختلافات شاته وغورځول او د ده رحلت یې د اسلامي نړۍ لپاره نه جبرانیدونکې ضائعه وبلله.

خلاصه داچې مرحوم ملامحمد عمر مجاهد د اسلامي امت یو خواخوږی قائد و چې ژوند یې هم د مسلمانانو لپاره د افتخار لامل و او وفات یې د هغوي د یوالي لامل وګرځیده.

ننۍ اسلامي نړۍ داسې یوه قائد ته ډیره اړتیالري چې د هغې خورې ورې پرګنې تریوه قیادت لاندې راټولې او خپل له لاسه ورکړي مجد او عظمت بیا تر لاسه کړي .

الله تعالی دې پر مرحوم ملامحمد عمر ( مجاهد) رحمتونه وکړي ، او د ده د اخلاص ، صداقت او له اسلام سره د وفادارۍ له برکته دې اسلامي نړۍ د دښمنانو له سازشونو او مکرنو څخه په امن کې وساتي.

امین یارب العالمین.

# ګلورینې پاڼې

## مروري اوښکي

(محمدالیاس فاتح)

قطار قطار راغلي ګرېوان ته مروري اوښکي
بیا احتجاج کوي ارمان ته مروري اوښکي

دانګو غرونه دزني ګړنګونه وهي
ځي دلمني بیابان ته مروري اوښکي

چې یې په مینه راپخلاکړمه جرګه لېږمه
دي مرور خفه جانان ته مروري اوښکي

دمظلومانو پېغامونه وړي دشعر په ژبه
دوخت غافله مسلمان ته مروې اوښکي

دازادۍ زېرى وروړي مجاهدینو لره
ځان رسوي کفري زندان ته مروري اوښکي

ماتوي تندې دسنګر دجل وهلو زلمو
ځي دجهاد دجنګ میدان ته مروري اوښکي

پرې راتازه به شي شېبې به شي دمست پسرلي
زمونږ دهیلو ګلستان ته مروري اوښکي

تیارې دظلم او وحشت به ترې په منډه تښتي
دخوابنۍ لمر به شي جهان ته مروري اوښکي

سهار ماښام داسلام لونې صدقې وباسي
تل دبریو ،طالب جان ته مروري اوښکي

ځان ته یې مرګ ورکړ،تاریخ ته یې تل پاتې ژوندون
شه نذرانه دعمر(۱) شان ته مروري اوښکي

نور وس مې نشته مهاجر یمه فاتحه اشنا
ډالۍ کوم افغانستان ته مروري اوښکي

## مشالونه

ذاکر مهاجر

دغرونو پر لمنو پرهواره مشالونه
دې کلي کې بلیږي تر سهاره مشالونه

نه خپله شوه لیلا نه دمجنون اروا مړه شوه
لاځو یې خمار ساتې انتظاره مشالونه

پرون دزلفو سیوري پر لمبو باندي خواره وو
نن ځکه پرګودر ښکاري بې شماره مشالونه

دمینې دپتنګ سینه لا نه ده پخه شوې
لا اوس یې هم راخیژي له پرهاره مشالونه

نري نري لوګي دي څوک ویده دي پرسکروټو
شیرینې! سپېلني شول ستا لپاره مشالونه

شفقه پرګرېوان دې لا ډېر غشي- دي ټومبلي
په غېږ کې دي ځنګیږي بې ازاره مشالونه

ترسوي چنار لاندې غلي غلي سترګکونه
انځور وو لکه ستا دسترګو یاره مشالونه

دمیني لیوني لکه چې تېر وو پدې پلونو
ذاکره ! لګېدل پردغه لاره مشالونه

## هاد عزم

## لوړ لوړ څلي

عبدالاحد حماد

مجاهد ده خدای دي مل شه
خدای دي نور هم ښایسته کړه

ته وا زما په فرمایش یې خدای جوړ کړی
دا غزل غزل ځواني دې نظر مه شه

ستا تر برندو سترګو ځار شم
په دې ارزي چې سپوږمۍ درپسې مړه شي

چې غزل درپسې مات شي
چې شپېلۍ درپسې مړه شي

د فطرت په لورېينه لا بسیا شې
لکه زه ستا ته هم هسې رنګ زما شې

په رقیب دې د غضب لینده شه خښه
مقدس د شعار غږ دې غلی مه شه

زما د توري حجري یاره
عجیبه کمال دې وکړ

په ښایست دې زما زړه کړ درې ورې
په غضب دې شوله سپینه ماڼۍ ورانه

## دغزا پیر

ابو بلال

په خوله څه نه وایو خو ویر زمونږ په زړونوکې دی
هاغه د سپینې غزا پیر زمونږ په زړونو کی دی

د بیلتانه غم دې په داسې تغر کښینولو
سترګې موپټې وي شوګیر زمونږ په زړونو کې دی

چې یئ نړی ته استقلال په نوي رنګ کې راوړو
ها د غیرت مینار امیرزمونږ په زړونو کې دی

نوربه نوکه باروي که خدای کوي دا رقیب
سپېڅلی عزم او تدبیر زمونږ په زړونو کی دی

د وخت غاصب او ستمګر مو اړولی نه شي
سپڅلې لاره پاک مسیر زمونږ په زړونو کې دی

اوس به هرګوټ ته دنړۍ ځي عمري لښکرې
په نړۍ واک غواړو تقدیرزمونږ په زړونو کې دی

څوک دي چې مخه کړي رابنده دغازي سمندر
چې دجهاد ښکلی بهیر زمونږ په زړونو کې دی

مؤحدین یو او غازیان یو وړاندې اخلو قدم
درنګین خوب ښکلی تعبیر زمونږ په زړونو کې دی

دخدای په مینه باندې مست حورو ته ځان رسوو
یو بادشاهان مزاج فقیر زمونږ په زړونو کې دی

(ابو بلال) به پل کیږدي د خپل رهبر په پلونو
دعقیدت یئ یو تصویر زمونږ په زړونو کې دی

# نوی قیادت نوي ازمیښتونه او مسؤلیتونه!!

(شاهد)

خبره به تبرکاً او د لیکنې سرلیک ته په کتو داسلامي امت دبزرګوار لاربنود ،فقید او فقیر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی په هغه ننګ بخښوونکې او غیرت پالې وجیزې پیل کړم، چې کلونه مخکې یې دکندهار په عیدګاه کې داختر په ورځ لمونځ کوونکیوته په خورا ډاډمنه لهجه او څرګندو الفاظو کې داسې ورغبرګه کړه چې ((زه به په خپله مشرۍ کې هیڅکله داسې کار ونکړم، چې راتلونکیو نسلونو ته پیغور شي )).

محترم امیرالمؤمنین پدې لنډې خو پر محتوی جملې سره، د دیپلوماتیکي چوپتیا او پس پسکو هغه کنګل چورلټ مات کړ،چې دشهید شیخ اسامه رح په باب په ولس او نړۍ کې پیدا شوی و،اسلامي امارت چې دتدبیر له مخې یې نوموړی شهید شیخ رح له مطبوعاتیانو څخه مصلحتاً ګوښه کړی وو او نړیوالو ددومره پر مختللې تکنالوژۍ سربیره بیا هم دده درک نه شوای لګولای او دافغانستان میشت اسامه رح یې کله دصومالیا ،بنګله دیش او کله دنورو افریقایي هیوادونو میلمه باله ، چې کله به یې دتجسس او څارګرې ادارې ټول پلټونکې وسایل دنوموړې په موندلو کې ناکام شول ،نو ویل به یې ،چې طالبانو ګوندې یا دا شیخ اسامه رح یا وژلی ، یا یې بندي کړي او یا یې له خپل هیواده شړلی دی ............نو هماغه و،چې دمحترم مشر ملاصیب له معنی ډکې دې جملې ټولو شکونو او شبهاتو ته منطقي ځواب ووایه او حقیقتاً یې هم نه تر پایه ، دشهید شیخ اسامه رح او نه هم دبل کوم بهرني مجاهد په باره کې داسې مفتضحانه کار وکړ او نه یې پرې دډیرو مادیاتو په بدل کې هم پرې دکوم لویدیځ وال هیواد سره کومه پټه معامله وکړه ، چې نن افغان ولس او طالبانو ته پیغور شي، بلکې دا هر څه یې دایمان په رڼا کې انجام کړل او یو بیلګه تاریخ یې خپل ولس ته په میراث کې پریښود!

د(۲۱) پیړۍ ددې عمر ثالث امیرالمؤمنین رح امارت او قیادت خو تقریبا دټولو مسلمانانو تر منځ متفق علیه او چاپې په هکله داسې کومه شرعي نیوکه نده کړې، چې ورته دځواب په لټه کې شو،بلکې دده غیور فقر ،مؤمنانه فراست ،قایدانه عواطف ،دافغانستان دخپلواکۍ سره بې کچه مینه ،دنړۍ دمظلومو مسلمانانو او مجاهدینو لاس نیوی،جهادي اتلواله ،دیرغلګرو پر وړاندې داستقامت او متانت تظاهر او ټولې هغه نیکمرغۍ

او دسعادت سبمولونه څښتن تعالی دهمده په قایدانه بدن کې ونغښتل او سړی داسې فکر کوي ،چې ګوندې الله ج همدا امیرالمؤمنین صیب ددومره ستر وسترو چارو دترسره کولو لپاره پیدا کړی و او همدا ددې سترو چارو دترسره کیدا ښه ممثل و اوبس !

رښتیا هم، چې د(۲۰۱۵ز) کال دجولای (۳۰)نیټه له اوښکو او ساندونه ډکه ورځ وه او هیڅ مسلمان به نوي پاتې شوی، چې ددې بزرګوارمشراو لویې هستۍ په فراق به یې په ګریبان داوښکو رودونه نه وي بهولې ،له (۲۲)کلن اسلامي او جهادي قیادت نه وروسته افغان ولس داسې یوه ورځ هم ولیده چې هغه دنړیوالو په اصطلاح دصدراسلام غوندې داسلامي شریعت پلي کوونکی ملامحمد عمر مجاهدرح بالاخره له دې فاني دنیا وکوچید او یوه لویه تشه ،ستره ضایعه او دروند غم یې خپلو جهادي ملګرو او مسلمه امت ته په وراثت کې پریښوده !!!

د روان( ۲۰۱۵ ) زیږیز کال دجولای (۳۱) مه بیادافغانستان په تاریخ کې هغه ورځ وه ،چې داسلامي امارت دډیرو ناخوالو څخه بریالی راووت او دډیرو معکوسو آندونو او اټکلونو خلاف ددې صف وحدت او دبیلګې یووالې ورځ شوه ،په همدې ورځ داسلامي امارت درهبري شوری غړیو او علماووپه خپل تدبیر او معقولیت سره هغه څوک داسلامي امارت دزعامت مشرتابه لپاره وړ وباله، چې داسلامي امارت بنسټګر فقید مشر امیرالمؤمنین رح په خپل ژوندانه کې دځان مرستیال ټاکلی و او همدا یې دامارت دمشرتابه لپاره مناسب بللی وو.

دنوې زعیم محترم ملا اختر محمد منصور صیب تعیین دډیرو کړیو شومې هیلې شنډې او دډیرو مغرضو عناصرو نا درست ارمانونه یې په سیند لاهو کړل، مخکښ ژورنالست (رحیم الله یوسفزی ) په خپله یوه تازه لیکنه کې کاږي چې :

((.....د ملا عمر په نشتوالي کې، ملا منصور د هغه د نومولي په توګه د څو کلونو لپاره د طالبانو مشرتوب کاوه او د ۲۰۱۳ له اپرېل وروسته چې ویل کېږي ملا عمر مړ شوی و، ملا منصور په عملي توګه د طالبانو مشر شو. له هغې راهیسې د طالبانو د غورځنګ تر ټولو لوړ تصمیم نیونکې مقام یا"د رهبرۍ شورا" په مشوره، ټولې پرېکړې د ملا منصور له خوا کېدلې.

ملا منصور چې د طالبانو د پېچلو سیاسي چارو اداره کولو او همدار راز په افغانستان کې د بغاوت په اړه بېسارې تجربه درلوده، د طالبانو د غورځنګ د نوي '' امیر '' یا مشر د دندې لپاره یې د هر بل سیال په پرتله پرېکنده برتري درلوده.

له همدې امله د حیرانتیا وړنه ده چې"د رهبرۍ شورا" یو لوې اکثریت، ۱۸-۲۰ غړو د ملاعمر د ځای ناستي په توګه د ملا منصور ملاتړ وکړ. ظاهرا، د طالبانو"موازي حکومت" والیانو، د جګړې د ډګر قوماندانانو او نورو مامورینو د یو لړ مراسمو په ترڅ کې چې په افغانستان او پاکستان کې ترسره شول، ملا منصور سره بیعت وکړ.

ځرنګه چې ملاعمر په خپله ملا منصور د خپل مرستيال په توګه غوره کړی و، د هغه ملاتړي استدلال کوي چې د ځای ناستي د مقام لپاره تر ټولو مناسب کس دی. هغوی باور لري چې د ملا منصور ليرې کول او پرځای يې يو بل کس د "امير" په توګه ټاکل به د طالبانو پوځي مباره کمزورې او جنګيالي به يې بې روحې کړي.

که څه هم د طالبانو پلوي مشر، روحانيون د ملا منصور او سيالې ډلې ترمنځ د منځګړيتوب هڅې کوي، د ملا منصور پلوي ډله استدلال کوي چې ملا منصور ته د بيعت کولو پروسه بشپړه شوې ده او بېرته نشي راګرځول کېدای. ......)) .

خو هغه کار چې اسلامي امارت يې له درز ،نفاق او تيت وپرک کيدو څخه وژغوره ،دنوې زعيم په صفت د (محترم ملا اختر محمد منصور صيب) ټاکنه د ه ،نوموړی چې يو تجربه کار مشر ،سنجيده او دپوره حلم او زغم څښتن دی، اميد شته ، چې ژربه کړای شي، چې دمشرملاصيب رح له وفاته وروسته راپيدا شوي اختلاف ته دخپل تدبير او فراست په رڼا کې دپای ټکی کيږدي او دمشرملا صيب رح په خولو توپولواو ستړياوو تاسيس شوی اسلامي امارت دپخوا په څير پياوړی او هيواد شموله کړي .

حقيقتاً پدې حساسو شيبو کې چې مجاهدين له يرغلګرو سره په جهاد بوخت دي ،داجباري سولې او اجباري تنازل ته اړويستلوعوامل تر پخوا ډير شوي او ځينې حلقې چې نه غواړې افغانستان دجهاد له لارې فتحه شي او داسلامي امارت بيرغ په ارګ وررپيږي ،شپه اوورځ لا لهانده او سرګردانه دي ،چې کومه داسې دسيسه طرح کړي ،چې داسلامي امارت قيادت (خدای ج مکره ) دجهاد له پرستيژ نه را کښته او دلويديځ پاله اونام نهاده سولې لپاره يې دغربيانو په خيمه کې پرپيال ميز باندې له غلامو ارګ ميشتو سره کښينوي او دخپلو هوسونو سره سمې پريکړې ته يې اړ کړي ،چې له نيکه مرغه نوي قيادت په خپله ړومبۍ پرانستونکې ويناکې ،پدې ټولوپلان شويو دسيسو دبطلان کرښه راکش کړه اوداچې داسلامي امارت لپاره دجهاد په مسير ټاکلو او دسولې دخبرو په عبث ګڼلو او ديموکراسي دنجات لاره نه انګيرل او داسې نور.... دقدرمن منصور صيب هاغه له معنی ډکې جملې وې، چې دابعادو په عمق کې دانصاف خاند ورڅخه داسلامي امارت دنوي زعيم تګلاره او پاليسي معلومولای شي اودمخالفينو ټولو هغو ګوتنيونو ته غابښ ماتونکی ځواب ويلای شي، چې بې له تحقيق او تعمق څخه يې دنوموړې په باب انګيرولې !

همداسې هيښوونکيو لحظاتو کې چې داسلامي امارت نوی قيادت دسولې خبرې ،دمجاهدينو دبريا رمز نه، بلکې دفتحې اسرار په جهادي مسير کې نغښتې بولي ،په لوی لاس دځينو استخباراتي کړيو او دجهادي صف دنا سنجيده او جفاکارو خلکو لخوا په مطبوعاتي ډګر کې نا ځاپه دمحترم اميرالمؤمنين دوفات خبر نشرول او دځينو حلقو په نغوته دې دسيسې ته دومره هوا ورکول، چې آن واشنګټن ،لندن ،پاريس او دکابل واکمنان يې هم تاکيد او توثيق ته وهڅيدل،په ډاګه دروان جهاد خلاف هغه پلان شوې توطئه او دسيسه وه، چې طراحانو يې غوښتل، څو يې پايلو کې دروان جهادي قوت او شدت څپې نيمګړې کړي او لاس ته راغلې

فتوحات سبو تاژ کړي، خو لله الحمد، نوي قيادت او دمشر تابه شورى په خپل متين هوډ او دبيعت په تجديد سره دا هر څه تس نس کړل او ددښمنانو شوم اهداف يې نيمه خوا کړل .

اوس چې اسلامي امارت له يوه تاريخي پړاوه تيريږي او کړنې يې دتاريخ حافظې ته سپارل کيږي، وبه کتل شي ، چې دې حساسې موضوع ته مو دکومو عينکوڅخه کتلې دي ، او کوم رجحان دې ته اړويستې يو، خو اوسني حالات او وضعيت ښيي، چې داسلامي امارت څخه پدې تاريخ جوړونکيو وختونوکې ځان مرورول ،يا پرخلاف يې علني موضعګيري کول او يا پرې داسې نيوکه کول، چې داسلام دښمنان همدا نيوکه دځان لپاره استدلال ګرځوي ، داميرالمؤمنين له روح ،دزرګونو فدايانو د سرو وينو او داسلامي امارت له سپيڅلو اهدافو سره ستره جفا او داسې لوى خيانت دى، چې الله تعالى به يې ددوئ درسوايي او شرم سبب وګرځوي،ځکه اسلامي امارت نه کوم شخصي ملکيت او نه دچا جايداد دى ،او نه يو کس دوه کسو ګټلى او تاسيس کړى ،ددې امارت سره نه يوازې دافغانستان دخلکو او طالبانو بلکې دنړۍ دمسلمانانو هيلې تړلې دي او دنړۍ مظلومان ورته دخپل نجات لپاره لارې څاري ،چې څوک دې لاره کې دشرعي نظام او ديرغلګرو دنسکوريدومخه ډب کوي اودشهيدانو وارث امارت له فتحې را ايساروي، دټولوهغو بدبختيو او بدمرغيو سره به مواجه کيږي ،چې له امله يې ددومره لوى امت دنجات مخه نيسي !

دنوې قيادت په مسؤليتونوکې ټول هغه مقاصد اواهداف راځي، چې له امله يې قدرمن اميرالمؤمنين رح په پرديسۍ کې خپل روح لايزال ښتن ته وسپاره او ترپايه داسلام پر احکامو او شرعي اصولو نه له چا سره سودا ته چمتو شو ، نه يې چاته سر ټيټ کړاوپه يوازې ځان يې ترپايه په خپلو زخمي منګلو کې داسلام بيرغ سپين هسک وساته !

ددې سربيره چې اسلامي امارت ،له ورپيښو ستونزو او ازمېښتونو څخه دادى ورځ تربلې دنجات خواته روان دى او لږه مسافه يا واټن يې منزل مقصود ته پاتې ده ،دنوي قيادت په مسؤليتونوکې راځي، چې کومو طالبانوچې دتحريک له پيل څخه داسلامي تحريک او بيا داسلامي امارت دباغ او بڼ په پاللواو سمسورولو کې لکه ديوه زهير ماليار غونډې رغنده نقش لوبولى، دصف څخه ليرې دخفګان او نهيلۍ په حالت کې پرينږدي ،بلکې ددوئ سابقې ته په کتلواودماضي قربانۍ په پام کې نيولو سره يې راضي او دامارت ليکي پرې پياوړي کړي ،توڅوداسلام ددښمنانو ټولې دسيسې خنثى شي او داسلامي امارت پراخه جغرافيه دټولو افغانانو او مسلمانانو ګډ کور شي !!



# د مرحوم امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد( رحمه الله ) ژوندلیک

د روان ۱۴۳۲ هـ ق کال د شوال المکرم د میاشتې په څوارلسمه نیټه د اسلامي امارت د رهبري شورا او د محترم امیرالمؤمنین د کورنۍ لخوا د یوې اعلامیې په خپرولو سره رسما ومنل شوه چې د اسلامي امارت مؤسس او زعیم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد له دنیا څخه رحلت کړی دی.
د مرحوم امیرالمؤمنین د وفات خبر په هیواد او درسته اسلامي نړۍ کې پراخ انعکاس له ځانه سره درلود ،دنړۍ له ګوټ ګوټ څخه مسلمانو پرګنو ، مجاهدینو ، دین پالو او دین ته متعهدو ډلو او افرادو د اسلامي امارت د زعیم په وفات خپګان ښکاره کړ، د نوموړي روح ته یې دعاګانې وکړې او د نوموړي د حسناتو او کارنامو په یادولو سره یې خپل عقیدت څرګند کړ.
څرنګه چې د عالیقدر امیرالمؤمنین د ژوند او ژوندلیک موضوع اوس یو ګرمه خبري سوژه ګرځیدلې ددې لپاره چې دمرحوم ملامحمد عمر مجاهد د شخصي ژوند او مشخصاتو په اړه د یو شمیر دروغجنو لیکوالانو ، تاریخ لیکونکو او مغرضو حلقو د غلطو تبلیغاتو مخه نیول شوې او په دې برخه کې لیکوالانو او ټولو عامو خلکو ته یو وضاحت رامنځته شوی وي د عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله ژوندلیک په لاندې کرښو کې درته تقدیموو.

**زوکړه او نشأت:**

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) د مولوي غلام نبي زوی، د مولوي محمد رسول لمسی او د مولوي باز محمد کړوسی، په کال ۱۳۳۹ هجري لمریز کې چې له ۱۹۶۰ میلادي سره سمون خوري د افغانستان د کندهار ولایت د خاکریز ولسوالۍ د چاه همت کلي په یوه متدینه او علمي کورنۍ کې وزیږېد. د ملا محمد عمر (مجاهد ) والد مرحوم مولوي غلام نبي صاحب هم په همدې خاکریز ولسوالۍ کې دنیاته راغلی او د همدې سیمې په مختلفو دیني درسونو او دائرو کې خپلې دیني زدکړې ترلاسه کړې، چې بیا په یاده سیمه کې د تدریس او اسلامي دعوت په چارو کې د زیار او مصروفیت له امله د خلکو په منځ کې د یو ښه علمي او ټولنیز شخصیت په توګه وځلید.
د ملا محمد عمر (مجاهد ) له زوکړې دوه کاله وروسته د هغه والد صاحب د کندهار له خاکریز ولسوالۍ څخه ددې ولایت د ډنډ ولسوالۍ د نودې کلي ته ولاړ او هلته د خپل ژوند ترپایه د سیمې د خلکو د دیني ښوونې او روزنې په چارو بوخت ؤ ، نوموړی په ۱۳۴۴ هجري لمریزکال کې چې له ۱۹۶۵ میلادي کال سره سمون خوري په همدې سیمې کې وفات او د کندهار ښار د طالبانو په پخوانۍ مشهوره هدیره کې خاورو ته وسپارل شو .
ملا محمد عمر (مجاهد ) د خپل پلار له وفات وروسته د پنځه کلنۍ په عمر له خپلې کورنۍ سره د کندهار له ډنډ ولسوالۍ څخه د اروزګان ولایت د هراود ولسوالۍ ته ولیږدیده او هلته یې د خپلو ترونو هر یو مولوي محمد انور او مولوي محمد جمعه تر سرپرستي لاندې د ژوند لومړنۍ مرحله پیل شوه.

### زدکړه اوتعلیم:

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) په اته کلنۍ کې د دیني علومو د ترلاسه کولو لپاره د روزګان ولایت د دهراود ولسوالي د شهرکهنه سیمې ابتدایي دیني مدرسې ته شامل شو. ددغې مدرسې سرپرستي هم د ملامحمد عمر (مجاهد ) د تره مولوي محمد جمعه لخوا ترسره کیده او ملا محمد عمر (مجاهد ) هم لومړنۍ دیني زدکړې له نوموړې ځخه پیل کړې.

د ملا محمد عمر (مجاهد ) دواړو ترونو په تیره مولوي محمد انور د نوموړي په دیني روزنې او پالنې کې خاص رول ترسره کړ.

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) د خپل شرعي تعلیم لومړنۍ او متوسطه دوره په همدغه مدرسه کې په بریالۍ توګه پای ته ورسوله او اتلس ۱۸ کلنۍ ته له رسیدو سره یې په افغانستان کې د مروجه لوړو شرعي زدکړو په تحصیل پیل وکړ، خو د شرعي لوړو زدکړو د تحصیل مرحله یې په کال ۱۳۵۷ هـ ش ـ ۱۹۷۸ م په افغانستان کې د کمونستانو د واک ته رسیدلو له امله نیمګړې پاته شوه.

### کورنی:

له قبیلوي اړخه د ملا محمد عمر (مجاهد ) تعلق د پښتنې قبیلې هوتکو په تومزي قوم پورې دی.

هوتک د پښتنې قبیلې یو لوی شاخ ، او هوتکیان د معاصر افغانستان په تاریخ کې د نومیالي اسلامي شخصیت حاجي میرویس خان هوتک په څیر اسلامپال، مدبر، ملي او جهادي اتلان لري.

سترغازي حاجي میرویس خان هوتک رحمه الله چې افغانان یې احتراما د میرویس نیکه په ویاړلي لقب یادوي په کال ۱۰۸۸ هـ ۱۷۱۲ م افغانستان له صفوي ظالمانه واکمنۍ ازاد ، او د افغانانو لپاره یې په کې د یوه خپلواک مقتدر اسلامي حکومت بنسټ کیښود.

د ملا محمد عمر (مجاهد ) کورنۍ له مسلکې اړخه ټول علماء او د دیني علومو مدرسین دي. هغوی خپل ټول ژوند د الله تعالی د دین خدمت، د شرعي علومو تدریس او د مسلمانانو دیني اوفکري روزنې ته وقف کړی، له همدې امله یې په خپله سیمه کې خورا زیات مقبولیت درلود او په معنوي لحاظ د ټولنې تر ټولو باوقاره او اجتماعي حیثیت لرونکي اشخاص پېژندل شوي دي. د دا ډول علمي او روحاني کورنۍ په ماحول کې د ملامحمد عمر(مجاهد ) پیدا یښت او بیا د خپلو علمي او فکري مربیینو (پالونکو ) ترمستقیمې پالنې لاندې د هغه نشونما په جهادي او فکري لحاظ نوموړې ته د دې صلاحیت وروباښه چې د افغاني ټولنې د نورو افرادو په منځ کې د یو مخلص، مجاهد ، زړه سواند ، با احساسه، اسلامي او ملي شخصیت په توګه راڅرګند او په خپلو جهادي او اصلاحي هڅو سره خپله ټولنه د فساد ، ظلم اوبې عدالتۍ او ګران هیواد افغانستان د حتمي تجزیې له شره وژغوري.

د مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) جهادي کورنۍ، وروڼه او ترونه ټول مجاهدین او تر اوسه پورې یې د خپلې کورنۍ ځلورتنه شهیدان شوي دي.

په افغانستان باندې د امریکایي یرغل په لومړۍ ورځ ۱۳۷۹/۲/۱۵ـ ۲۰۰۱/۱۰/۷ د ملا محمد عمر (مجاهد ) تره ملا محمد حنفیا لومړنی شخص وو چې د امریکایي یرغلګرو په بیرحمانه هوایې برید کې په شهادت ورسید.

### جهاد او مبارزه:

مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر (مجاهد ) د خپل ژوند دریمې لسیزې ته لا نه وو ور داخل شوی چې په افغانستان کې کمونستانو د پوځي کودتا له لارې واک ترلاسه کړ. دا هغه وخت و چې نور نو د ملا محمد عمر (مجاهد ) په څیر د هیواد ټولو زده کوونکو ته د خپلو دیني زده کړو استمرار ناشونی ښکاریده؛ ځکه د ملحدو کمونستانو لومړنۍ مقابله د ټول هیواد په

کچه له علماوو، طالبانو، محصلینو او مسلمانو منورینو سره وه، هماغه ؤ چې ملا محمد عمر (مجاهد) هم اړینه وبلله چې خپلې لوړې دیني زدکړې نیمګړې پرېږدي او د خپل شرعي مسؤلیت د ترسره کولو لپاره له مدرسې څخه د جهادي جبهې په لوري مخه کړي.

هماغه و چې نوموړي خپل جهادي بهیر د روزګان ولایت د دهراود په ولسوالۍ کې د حرکت انقلاب اسلامي په تنظیم کې پیل کړ. په دغې ولسوالۍ کې له څه وخت تېرولو وروسته نوموړی د روزګان ولایت په کچه د یوه پېژندل شوي زړور جهادي شخصیت په توګه مطرح او د دغه ولایت په بېلا بېلو برخو کې یې د کمونیستانو په وړاندې په متعددو پوځي عملیاتو کې فعال رول ترسره کړ؛ هماغه ؤ چې نوموړي د دغه جهادي شهرت او په جهادي عملیاتو کې د موفقانه رول له امله په مجاهدینو کې دومره مقبول او ومنل شو چې کله په هغه وخت کې د دهراود په ولسوالۍ د مختلفو سیمو د مجاهدینو له لوري پراخ تعرضي عملیات ترسره کېدل نو ملامحمد عمر مجاهد په همدې عملیاتو کې د ټولو مجاهدینو په خوښه د مختلفو جبهاتو د مجاهدینو مشر او تعرضي قومندان وټاکل شو او ښه موفق عملیات یې ترسره کړل چې په همدې عملیاتو کې نوموړی په لومړي ځل زخمي هم شو، نوموړي تر دریو کالو زیات وخت د خپلې سیمې د مجاهدینو سره د یرغلګرو روسانو او کمونستانو خلاف په ډېرو مخامخ جګړو کې ګډون وکړ.

دمرحوم ملا محمد عمر مجاهد د جبهې ملګري او مشران وايي چې ملامحمد عمر اخند په هغه وخت یعنې د جهاد په پیل کې سره له دې چې عمر یې کم وو خو د هر ډول مسئولیت او کار د ترسره کولو استعداد او صلاحیت یې درلود او د ډېر ښه صحت او قوت خاوند ؤ.

وروسته په کال ۱۳۶۲ هش ۱۹۸۳ میلادي کې له خپلو جهادي ملګرو سره د جهادي فعالیتونو د انسجام په غرض د کندهار ولایت میوند ولسوالۍ ته ولاړ او هلته یې د حرکت انقلاب اسلامي د تنظیم د مشهور جهادي قومندان فیض الله اخند زاده په جبهه کې د روسي یرغلګرو او د هغوئ د کمونستي تالي څټو په خلاف وسله وال جهاد ته دوام ورکړ. په کندهار ولایت کې هم په بې شمیره جهادي عملیاتو کې د نوموړي د موفقانه رول او په پوځي تکتیکونو کې د ښې ورتیا او شهرت له کبله د سیمه ییزو جهادي قومندانانو په کچه د وخت د جهادي تنظیمونو د پاموړ وګرځید او د مرحوم مولوي محمد نبي محمدي په مشرۍ د حرکت انقلاب اسلامي د تنظیم لخوا د مستقلې جهادي جبهې مسؤلیت ورته وسپارل شو.

له کال ۱۳۶۲ هـ ش ـ ۱۹۸۳ م تر ۱۳۷۰ - ۱۹۹۱ پورې ملامحمد عمر (مجاهد) د کندهار ولایت د میوند، ژړۍ، پنجوايي او ډنډ ولسوالیو په مربوطاتو کې چې د شوروي قواوو په ضد د جهاد مهم مرکزونه وو او نړدې هره ورځ به یې مجاهدین له دښمن سره په جګړه بوخت وو همدارنګه د زابل په ولایت کې د شهرصفا او مرکز قلات مربوطو سیمو کې د کابل ـ کندهار په لویه لاره د روسي یرغلګرو په خلاف ډېر موفقانه عملیات ترسره کړل چې په ټولو هغو کې شخصا په مستیقمه توګه سهیم ؤ. د ملا محمد عمر (مجاهد) تر ټولو خوښه کړای شوې وسله د روسي جنګي شوبلو (ټانګونو) په ضد استعمالیدونکې خورا مؤثره وسله «R.P.G.7» توغندی و چې د مجاهدینو په مینځ کې به راکټ بلل کیده او ده یې په ویشتلو کې ځانګړې مهارت درلود، د یادونې وړ ده چې کندهار په ځانګړي ډول د میوند، ژړۍ او پنجوايي سیمې د کمونیزم خلاف جهاد کې هغه سیمې وې چې د روسانو د ماتې او شکست محوري نقطې بلل کېدې په دې سیمه کې د کندهار هرات په لویه لاره د کمونستانو دومره زیات ټانګونه او نور وسایط تخریب شوي و چې د سرک پر یوه او بله غاړه د ښمن د هغو سوځول شویو ټانګونو او پوځي وسائطو دیوالونه وهلي و څو د مجاهدینو له بریدونو څخه ځانونه پړې وساتي.

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) له روسانو سره د جهادي عملياتو په مخامخ نښتو کې ځلور ځله ټپي شوی و او په وروستي ځل ټپي کېدو کې یې خپله ښۍ سترګه هم له لاسه ورکړې وه.

ملا محمد عمر مجاهد د کندهار او همجوارو ولایاتو په سطحه د شوروي یرغلګرو او داخلي کمونیستانو په ضد د جهاد یو وتلی او مخکښ قومندان پېژندل کېده، چې په خورا ډېرو جهادي عملیاتو کې یې ټاکونکې ونډه او رول درلود، دلته به د نوموړې د روس ضد جهاد مهال د ملګرو له قوله یو څو خاطرې او یادونې د بېلګې په توګه رانقل کړو:

۱ –د کندهار په ولایت کې د دښمن یوه خورا محکمه پوسته وه چې د بدوانو پوسته یې ورته ویله د دې پوستې سره دښمن په خورا حساس او حاکم ځای کې ټانګ درولی وو چې له انداخت کولو یې مجاهدین ډېر په تکلیف وو ډېرو مجاهدینو څو ځله کوښښ ورباندې وکړ چې دا ټانګ وولي او مجاهدین یې له شره خلاص کړي خو له بیا بیا هڅو سره سره یې کوم مجاهد په ویشتلو بریالي نشو بالاخره د سیمې مجاهدینو له سنګ حصار نه د مرستې لپاره ملا محمد عمر مجاهد راوغوښت او همدا ټانګ چې د بدوانو د پوستې په ټانګ یې شهرت موندلی وو ملا محمد عمر مجاهد د خپل آر پي جي راکټ په توسط په نښه او له منځه یوووړ چې دا په هغه وخت کې مجاهدینو ته خورا ستره لاسته راوړنه وه .

۲ –له روسانو سره د جهاد په دوران کې د کندهار د محله جات په سیمه کې په یوه مخامخ جګړه کې چې د کندهار یو تن بل وتلی او غښتلی مجاهد شهید ملا عبید الله اخند چې وروسته یې د اسلامي امارت د دفاع وزیر او د امریکا تر یرغل وروسته د مرحوم امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د نائب په توګه دنده ترسره کوله هم ورسره ملګری و، د دښمن دوه ټانګونه او موټر وسوځول چې په سبا ورځ له لیري نه کتونکو خلکو چې دا سوزول شوی کتار لید نو ګمان یې کاوه چې قوه اوس هم ولاړه ده، حال دا چې د قوې زیات موټر سوزول شوي او نور یې بېرته خپلو مرکزو ته په شا شوي وو.

۳ –د روس ضد جهاد په مهال د کندهار-هرات په لویه لاره د ژړۍ ولسوالۍ د سنګ حصار په سیمه کې د روسانو ټانګونه تیریدل ملا محمد عمر مجاهد چې ملا برادر اخند (چې بیا د اسلامي امارت نا ئب شو ) هم ورسره و، د روسانو په قوه د برید لپاره یوازې د راکټ څلور ګولۍ (مرمۍ) ورسره وي دوی له همغو څلورو ګولیو سره د دښمن په کتار جنګ شروع کړ چې په ترڅ کې یې په همدې څلورو مرمیو د دښمن څلور ټانګونه وویشتل .

۴ –ملا برادر اخند چې له مرحوم ملامحمد عمر مجاهد سره په جهادي دوره کې نږدې پاتې شوی وایي چې ملاصاحب دومره زیات روسي ټانګان ویشتلي چې د کثرت له امله یې له ملګرو څخه شمیر ګډوډ وو چې ټول به څومره وو.

په کال ۱۳۷۱هـ ش، ۱۹۹۲ز کې د نجیب د کمونستي واکمنۍ له سقوط او په هیواد کې د تنظیمي جګړو له پیلیدو سره سم ملا محمد عمر (مجاهد ) هم د نورو رښتینو مجاهدینو په څیر وسله له اوږې کوزه او په خپله جهادي سیمه کندهار ولایت، د میوند ولسوالۍ د سنګ حصار د ګیشانو کلي د حاجي ابراهیم د مسجد ترڅنګ یې یوه دیني مدرسه جوړه او په همدې مدرسه کې میشت شو او له ۱۴ ستونزمنو جهادي کلونو وروسته یې د خپلو څو تنو جهادي ملګرو په ملتیا د خپلو نیمګړیو شرعي زدکړو په پوره کولو بیا پیل وکړ.

دا هغه مهال ؤ چې د پلازمېنې کابل په شمول ټول هیواد تنظیمي بې هدفه جګړو په سراخیستی ؤ، د ځینو تنظیمي جګړه مارانو د شخصي غرضونو او هوسونو د ترلاسه کولو له امله د مقدس جهاد سپیڅلي آرمانونه نیمګړي او د افغان مسلمان ولس د یو نیم میلیون شهیدانو پاکې هیلې همداسې تر پښو لاندې وې.

## د فساد په وړاندې پاڅون او د اسلامي امارت تأسیس:

د کمونیستي رژیم له سقوط وروسته د دې په ځای چې اسلامي نظام تاسیس شي او په دې توګه د مجاهد ملت د کلونو کلونو ارمان پوره شي، خپل منځي جګړې پیل شوې، واقعي مجاهدین د یو منظمې دسیسې له مخې ضعیفه او یا هم بیخي له صحنې وایستل شول، ځینو پخوانیو مجاهدینو هغه کمونیستان چې باید محاکمه شوي وای په ځنګ کې ورسره ونیول او ځینو نورو په منظمه توګه د ولس په لوټلو، بې آبه کولو او د وطن په چور تالان پیل وکړ.

په دې توګه په درست هیواد کې د هرج ومرج یو داسې تور دوران راغی، چې شاید پخوا یې افغانانو نمونه او بیلګه نه وي لیدلې، د مؤمنو هیوادوالو سر، مال او ناموس هره شیبه له ګواښ سره مخامخ و، د هیواد په لارو او سرکونو د خودسره، جاهلو او پست صفته ټوپکیانو ځنځیرونه او پاټکونه خپاره شول، چې هر یوه د خپل مزاج موافق له بې وسه هیوادوالو نه یوازې پیسې اخیستې، بلکې د هیوادوالو په عزت او ناموس یې هم صرفه نه کوله، د هیواد د ملي شتمنیو، مادي او معنوي پانګو، د جهاد د غنائمو او حتی د هیواد د ځنګلونو او کانونو داسې بې رحمانه چور تالان پیل شو، چې پخوا یې کله هم بیلګه نه وه لیدل شوې، مؤمن اولس چې څوارلس کاله یې جهاد کړی و نه تنها دا چې د جهاد ثمره یې د ضیاع له خطر سره مواجه وه، بلکې ورځنی ژوند یې هم له خطر سره مخامخ و.

د هرج ومرج د فتنې له امله ټولنیز فساد، قتل وقتال، چورتالان، ظلمونه، وحشتونه او د مسلمانانو رنځونه هره شیبه په ډیریدو و، چې دې حالت رښتیني مجاهدین هغوی چې د افغان مؤمن اولس د سوکالۍ، ازادۍ او سرلوړۍ لپاره یې مبارزه کړې وه سخت ځورول.

اروابناد ملا محمد عمر مجاهد چې دغه مهال له خپلو مجاهدو ملګرو سره د کندهار په میوند ولسوالۍ کې اوسیده، د نورو واقعي مجاهدینو غوندې د دې حالاتو لیدلو ډیر زیات اندیښمن کړی و نوموړي لیدل چې د کندهار – هرات په لویه لاره ګام په ګام پاټکونه جوړ شوي او ټوله ورځ د هیواد مظلوم مسافر، ښځې او سپین ږیري د بد اخلاقه ټوپکیانو په لاس لوټل کیږي، بې آبه کیږي او وژل کیږي، باید وواېو چې دغه مهال په کندهار کې پاټکونه دومره زیات شوي و، چې د هیواد تجارانو چې له هرات څخه به یې د کندهار د سپین بولدک ولسوالۍ د ویش بندر ته مالونه راوړل، د دې په ځای چې په عمومي لاره خپل مالونه انتقال کړي د ډیرو پاټکونو له امله یې له هرات څخه راوړي تجارتي اموال په میوند کې ښکته کول او د ریګ له لارې یې په دښتو کې په ډیرو تکلیفونو تر ویش پورې رسول تر څو د پاټکوالو له شره خوندي وي.

ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله او دده مجاهدو ملګرو ته د کندهار ښار وضعیت هم ورمعلوم و، چیرته چې خودسره ټوپکیانو ښار کوڅه په کوڅه تر خپل منځ ویشلی و، د بیت المال ملکیتونه یې مسلسل غصبول او په نغدو پیسو یې پلورل او په دولتي ځمکو یې شخصي مارکیټونه جوړول، په دې سربیره یې تر خپل منځ همیشه جګړې کولې چې ترمنځ یې اولس ځپل کیده.

همدې بې پایه ناخوالو واقعي مجاهدین اړ کړل چې د فساد د ورکولو او د مسلمانانو د سر او مال د تحفظ په خاطر خپل وس وکړي، مجاهدینو تر خپل منځ مشورې او غونډې پیل کړې، ملامحمد عمر مجاهد او ملګرو یې خپله لومړنۍ غونډه د پنجوایي ولسوالۍ د زنګاوات په سیمه کې د سیمې له مشهورو او پیژندل شویو علماء کرامو سره جوړه کړه، د روس ضد جهاد په مهال د کندهار د مجاهدینو د عمومي قاضي مولوي سید محمد صاحب (چې په مولوي پاسني صاحب یې شهرت موندلی و) په مشرۍ د علماء کرامو دې غونډې ملا محمد عمر مجاهد ته وویل چې باید د فساد په ضد قیام وکړي او دوی ټول یې ملاتړي دي، له همدې غونډې څخه ملا محمد عمر مجاهد د اسلامي تحریک اساس کیښود او د ۱۴۱۵ هـ ق کال د محرم الحرام ۱۵ نیټه د فساد او ګډوډۍ په ضد یې د مبارزې بنسټ کیښود.

د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ اسلامي تحریک د فساد د مخنیوي په خاطر مبارزه پیل کړه، چې د اولس او رښتنیو مجاهدینو له پراخ هرکلي سره مخامخ شوه، لومړی یې کندهار ولایت او وروسته یې د افغانستان زیاتي سیمې له بې بندوباره او فاسدو ټوپکیانو تصفیه کړې، هغه مهال چې د هیواد ډېري سیمې د طالبانو تر تسلط لاندې راغلې وې د ۱۴۱۲ هق کال د ذوالقعدې میاشتې په ۱۵ مه نیټه د افغانستان د علماء کرامو یو لوی ټولي چې شمیر یې تر ۱۵۰۰ زیات و، په کندهار کې یې د یوې غونډې په دائرولو سره د ملامحمد عمر مجاهد امارت تائید او نوموړي ته یې د امیرالمؤمنین لقب ورکړ، د ۱۳۷۵ هـ ش کال د میزان میاشتې په شپږمه نیټه د افغانستان پلازمینه کابل هم د اسلامي امارت تر تسلط لاندې راغله چې وروسته د افغانستان د ټولو مرکزي او شمالي سیمو په شمول د هیواد په ۹۵ فیصده خاوره د اسلامي امارت حاکمیت ټینګ شو.

د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ د افغانستان اسلامي امارت په افغانستان کې د شریعت په اساساتو ولاړ اسلامي نظام رامنځته کړ، له اوږده ځنډ وروسته یې یوځل بیا نړۍ ته د اسلامي نظام ژوندۍ بیلګه وړاندې کړه، هیواد یې له تجزیې وژغوره او هم یې د بې مسؤلیته کسانو نه د بیت المال اسلحې را ټولې کړې او یو بې مثاله امن یې راووست دا په داسې حال کې چې ټوله نړۍ د ملل متحد په شمول دغه کار ته بې وسه او وارخطا وه خو نړیوال کفري مستکبرینو دا شریعت او امارت ونه شو زغملی نو ځکه یې په وړاندې دښمنانه دریځ خپل کړ او بې ځایه بهانې یې ور ته لټولې ترڅو یې په پای کې ورباندې په ګډه پوځي برید وکړ.

## د ملا محمد عمر (مجاهد) قیادي شخصیت:

ملا محمد عمر (مجاهد) د یو قیادي شخصیت په توګه د ځانګړي طبیعت او سلیقې څښتن دی.

نوموړي د نړۍ د نورو چاراکو او لوړ رتبه مشرانو برعکس له ځان ښکارونې او تظاهر څخه کرکه درلوده، له اړتیا پرته یې خبرو کولو ته چنداني لیوالتیا نه ښوده، خو د ضرورت په وخت کې یې خبرې بیا ډېرې پخې، سنجول شوې او معقولې وې. د بیلګې په توګه په افغانستان باندې د امریکایې یرغل په پیل کې چې د امریکا یانو له لوري د اسلامي امارت د له منځه وړلو او په تبلیغاتي لحاظ د مجاهدینو د مورال کمزوري کولو لپاره امریکایې هڅې ډېرې ګړندۍ روانې وې او ټولې غربي رسنۍ، راډیویي او ټلویزوني شبکې ورته وقف وې.

ملا محمد عمر (مجاهد) د دغو ټولو شیطاني تبلیغاتي هلو ځلو په وړاندې په خورا مطمئنه او ډاډه روحیه سره په خپلو عام فهمه او ساده خبرو کې خپل ملت ته د اطمنان او ډاډ ورکولو داسې معنا لرونکی پیغام ورکړ: «الله تعالی په هرڅه قادر دی په الله تعالی باندې د امریکا او د یوه میږي (میږتون) د قدرت هیڅ فرق نشته امریکایان او د هغوئ ملګري دې دا خبره په غور سره واوري چې اسلامي امارت داسې نظام نه دی چې امیر به یې لکه ظاهر شاه (د افغانستان پخواني پاچا) غونډې روم ته ولاړ شي او عسکر (افراد) به یې تاسو ته تسلیم شي، بلکې دا د جهاد منظمې جبهې دي.

که تاسو ښارونه او پایتخت لاندې او اسلامي حکومت ړنګ هم کړئ زمونږ مجاهدین به وطنونه او غرونه درته ونیسي بیا به تاسو څه کوئ؟ بیا به لکه د کمونستانو غونډې په هر ځای کې وژل کیږئ!

تاسې یوه شئ چې ګډوډي رامنځ ته کول اسانه ده خو بیرته د ګډوډۍ له منځه وړل او نظام جوړول خورا ګران کار دی، مرګ حق دی او هر چا ته راځي نو چې د امریکا په ملګرتیا کې د بې ایمانۍ او بیغیرتۍ په حالت کې وي دا به ښه وي او که په اسلام کې له ایمانه سره د غیرت په حالت کې به ښه وي.

ښایې په هغه وخت کې د مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد) په دغه عقیدوي وینا د ډېرو ښاغلیو پوره سرنه وي خلاص شوی، خو اوس چې د دغې نا انډوله حیرانوونکې معرکې له پیل نه قریب څوارلس کاله تیریږي او د امریکایانو په شمول د ناټو

ترون او د هغوی ټول ایتلافیان د ملا محمد عمر (مجاهد ) د تش لاسو عقیدوي مجاهدینو په مقابل کې له ښکاره ماتې سره مخامخ دي، د نوموړي د هماغې تاریخې وینا په حقیقت به یې سرخلاص شوی وي.

دغه راز نوموړي د امریکایي یرغل په پیل کې افغان ولس ته د یوې راډیویې وینا په ترڅ کې یرغلګرو او د هغوئ ګوډاګیانو ته په اشارې سره وویل چې: «وسلې مرګ کولای شي، خو مرګ ګرځولی نشي» یاده شوې جمله همغه مهال ځینو ته یو بې مفهومه ترکیب ښکاریده، خو دادی په تېرو دیارلسو کلونو کې د یاد مضمون عیني مصداق نړیوالو د سر په سترګو ولید چې یرغلګرو ځواکونو د خپلې پرمختللې ټیکنالوژۍ او وسلو په زور ډېر مرګونه وکړل خو له ځانه یې مرګ ونشو ګرځولی او په تیره لسیزه کې د ملا محمد عمر (مجاهد ) په مشرۍ د اتلو مجاهدینو په لاس ووژل شول، ژوبل شول او شکست ته مجبور کړای شول، او دا یو عیني واقعیت دی چې اوس په پرمختللو وسلو او تجهیزاتو سمبال مغرور یرغلګر ځواکونه هم په افغانستان کې د خپلو زرګونو پوځیانو د مرګ ژوبلې ښکاره اعترافونه کوي.

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) نظر درلود چې تر ډېرو ویلو لږ عمل کول ارجحیت لري، د نوموړي ژوند له تکلفي تشریفاتو ډېر صفا او پاک و، سادګي او بې تکلفه حالت یې د ژوند په ټولو اړخونو احتوا کړې وه، ساده لباس، ساده خوراک، بې تکلفه خبرې، بې تکلفه ناسته ولاړه یې فطري عادت و، تکلف، متکلفین او متکلفانه کړه وړه یې هیڅ نه خوښېدل.

نوموړي قاطع والی، تدبر او اخلاص د کارونو د پرمختګ له اساساتو څخه باله او د ملګرو له منځه یې هغه څوک ډېر خوښېدل چې مدبر اخلاصمند او جدي به وو.

همدارنګه نوموړي له مشکلاتو، مصیبتونو او کړاونو سره ښه ځان عادت کړی و، د هر ډول لویې حادثې او مشکل پیښېدلو په مقابل کې یې وضعیت کاملا عادي و، ویره او وارخطایي یې په زړه کې نه ورتیریده. د خوښۍ او مصیبت، کامیابۍ او ناکامۍ په مهال کې یې پرخپل ځان خورا ښه کنترول درلود او مطمئن به و.

د علماوو او مشرانو یې ډېر درناوی کاوه، سنګیني، وقار، حیاء، ادب، متقابل احترام، خواخوږي، ترحم او اخلاص یې طبیعي خصلتونه و، کلک عزم او په ټولو کارونو کې په یوه الله توکل او د هغه په مقدراتو ریښتونی باور یې د ژوند ځانګړي مشخصات و.

همدا لامل دی چې ملا محمد عمر (مجاهد ) د خپلو لارویانو او مجاهدینو په زړه کې داسې محبوبیت پیدا کړی و چې د هغه تعلق نه په ظاهري منصب پوري و او نه په مادي امکاناتو پوري، د امریکایي یرغل په خلاف د جهاد په کلونو کې د هغه تر مشرۍ لاندې عام مجاهدین ماسوا له دې چې هغه مخامخ وویني یوازې د هغه شفاهي او مکتوبي اوامرو ته په داسې احترام قائل وو، چې د تعمیل لپاره یې آن د خپل سر په قربانولو هم باک نه کاوو.

## د نړیوالو اسلامي قضایاو په اړه یې اهتمام:

ملا محمد عمر (مجاهد ) د طالبانو د اسلامي تحریک د مؤسس او د مسلمانانو د یوه مشر په حیث د اسلامي امت د قضایاوو په اړه خاص اهتمام درلود .

د مسلمانانو د لومړې قبلې مسجد اقصی او د فلسطیني مسلمانانو له برحقې داعیې او د نړۍ په لر او بر کې له داسې نورو اسلامي قضایاوو نوموړي همیشه دفاع کوله او نوموړی له غاصبو صهیونستانو څخه د مسجد اقصی ازادول د هرمسلمان شرعي مسؤلیت ګاڼه.

مرحوم ملا محمد عمر مجاهد د اسلامي امت په درد دردمند مشر و، او له مسلمانانو وروڼو سره اخوت، همدردي، ایثار او همکاري یې یوازې شعاري نه بلکې عملا یې هم همیشه ثابته کړې وه.

### عقيدوي او فکري انتماء:

ملا محمد عمر (مجاهد ) په عقيدوي او فکري لحاظ د مسلمانانو د اهل السنة والجماعة د منهج لاروی او د حنفي مذهب مقلد و .

د خرافاتو او بدعتونو سخت مخالف و ، د مسلمانانو ترمنځ يې مذهبي، فکري او تنظيمي اختلافات هيڅ نه خوښيدل. خپلو مجاهدينو او ټولو مسلمانانو ته په خپلو منځونو کې د اسلامي وحدت او فکري همغږۍ په ټينګولو توصيه او ټينګار کاوی، د مسلمانانو ترمنځ عقيدوي وحدت او يو والی يې د وخت تر ټولو اهم ضرورت باله، د قرآن او حديثو په رڼا کې د سلف صالحينو او ائمه مجتهدينو په نقش قدم رفتار کول يې د اسلامي امت د نجات يوازينی لامل باله.

### شخصي ژوند:

مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) چې د ژوند زياته برخه يې د ديني علومو په زده کړه او مطالعه، جهاد ، دعوت او د اسلام د لارې په خدمت کې تيره کړې د افغانستان د معاصرو چارواکو په جمله کې شايد تر ټولو نيستمن او د بيت المال له شتمنيو څخه نه استفاده کوونکی شخص وبلل شي؛ ځکه نوموړي نه د تير جهاد په مهال له خپل جهادي نفوذ څخه په استفادې سره د خپل شخصي ژوند د برابرولو په اړه څه کړي او نه يې په افغانستان باندې د امارت د «۷» کلنې سرتاسري واکمنۍ په مهال کې، مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) د وفات تر وخته نه کوم د او سيدلو عادي کور په ملکيت کې درلود او نه هم د بهرنيو هيوادونو په بانکونو کې نغدي شتمنی.

په کال۱۳۷۸هش ۱۹۹۹ م کې چې د ملګرو ملتونو د امنيت شورا له لوري په افغانستان باندې ظالمانه يو طرفه اقتصادي بنديزونه ولګيدل او په بهرنيو بانکونو کې د طالبانو د مشرانو د مالي حسابونو د کنګل کيدلو حکم وشو ، مرحوم ملا محمد عمر (مجاهد ) د افغانستان د اسلامي امارت د امير په توګه د امارت تر ټولو لوړرتبه شخص ؤ چې نه يې د افغانستان په داخل کې او نه له افغانستان نه بهر په کوم بانک کې نه په خپل شخصي او نه هم په مستعار نوم مالي حساب درلود .

د امارت د حاکميت په مهال چې د نوموړي استوګنځی د دښمنانو له لوري تر مرګونو بريدونو لاندې راغي او د فاميل د نږدې افرادو په شهادت سربيره د ګڼو نورو کسانو د شهادت لامل هم وګرځيده ، نو د امارت ځينو چارواکو د نوموړي د حفاظت په مقصد د کندهار ښار په شمال لويديځ کې د باباصاحب د غره د کوتل لاندې سيمه کې چې نږدې خوا و شا يې کومه ولسي ابادي نه وه د نوموړي لپاره يو استوګنځی او د اسلامي امارت د مقام دفترجوړ کړ، چې هغه هم د تصرف په لحاظ د بيت المال له عمومي ملکيتونو څخه ګڼل کيده نه د نوموړي شخصي ملکيت .

په کال ۱۳۷۵- هش ۱۹۹۶ م کې چې کله د هيواد د يونيم زر علماوو او مخورو له لوري نوموړي ته د اسلامي امارت د امير لقب ورکړل شو نوموړي ددې په ځای چې د امارت د ورسپارلو له امله د خوښۍ احساس وکړي دومره وژړل چې خپل د اوږي لوی څادر يې په اوښکو لوند او د غونډې په پای کې يې حاضرو علماوو ته په خپلې تاريخي وينا کې داسې وويل: «اې علماوو ! تاسو د خپل شرعي علم له مخې د حضرت رسول اکرم ص د وارثانو حيثيت لرئ، تاسو چې نن ما ته د غه درونده مسؤليت په اوږو را واچاوه په حقيقت کې د هغه د استقامت او انحراف مسؤليت ټول ستاسو په غاړه دی!

ای زموږ استاذانو درنو علماوو ! که خدای مه کړه له موږ څخه د مسلمانانو په دې ستر امانت کې څه تقصير او انحراف پيښيږي د هغه سمونه او اصلاح ستاسو شرعي مسؤليت دی، تاسو به د خپل شرعي علم په رڼا کې دې طالبانو ته د استقامت او په حقه لاره د تللو حتمي لارښوونه کوئ، که چيري له دې طالبانو څخه د اسلامي احکامو د تنفيذ په اړه کوتاهي يا انحراف

رامنځته کیږي او تاسو هغه وینئ او د اصلاح په اړه یې څه نه وایاست د هغې پړه به د الله په نزد ټوله ستاسو په غاړه وي او زه به د سوال ځواب په ورځ ستاسو ګریوان ته لاس دراچوم«.

### طبیعت اوشخصي مزاج:

ملا محمد عمر (مجاهد ) د خپلې خاموشي ترڅنګ یو ډول خاص ظرافت او خوش طبعي هم درلوده نوموړي په هیڅ باندې که څه هم په هر لحاظ تر ده کشر وي ځان لوړ نه ګاڼه، له خپلو ملګرو سره یې برخورد ډېر مینه ناک، صمیمانه، باشفقته او له متقابل احترامه ډک و، په مجالسو کې یې زیاتره د جهاد په اړه بیانونه کول.

### له امریکایي یرغل وروسته

له امریکایي یرغل وروسته ستونزمنو امنیتي شرایطو او د دښمن له لوري سخت جدي تعقیب د مرحوم ملامحمدعمر(مجاهد ) په معمولي وظایفو او د اسلامي امارت د زعیم په توګه د جهادي چارو په تعقیب او تنظیم کې کوم تغیر رانه ووست ،په دې وخت کې چې نوموړی په افغانستان کې په مخفي شکل اوسیده نوموړي خپله کاري ورځ د الله عزوجل په عبادت او د قرآن کریم په تلاوت پیلوله او د فرصت په مهال یې د قرآن کریم د بېلابیلو تفاسیرو او احادیثو مطالعه کوله، د یرغلګرو په خلاف د جهادي چارو مراقبت یې په ډېرجدیت سره کاوه، د جهادي او پوځي امورو د ترتیب او سمبالښت په غرض یې په معینه طریقه جهادي قومندانانو ته اوامر او توجیهات صادرول، د جهادي نشراتي منابعو او نړیوالو خبري رسنیو له تعقیب څخه یې د یرغلګرو خلاف جهادي بریاوو او نورو موضوعاتو جاج اخیست ، او له همدې لارې یې د هیواد او نړۍ له ورځنیو پیښو ځان خبراوه. دغه مصروفیتونه د نوموړي د ورځني ژوند اساسي مشغله وه.

نوموړي د اسلامي امارت د زعیم په حیث سره له دې چې د یرغلګرو تر ډېر تعقیب لاندې و او دده په سر یې لس میلیونه ډالر انعام هم ټاکلی و مګر هیڅکله له افغانستانه بهر ونه ووت تر دې چې دهمدې جهادي بهیر په اوږدو کې د وړپیښې شوي ناروغۍ له امله په حق ورسید. اناالله وانا الیه راجعون

د نوموړي د وفات اعلان د اسلامي امارت درهبري شورۍ او دمرحوم د کورنۍ لخوا د ۱۴۳۲ هـ ق کال د شوال په ۱۴ نیټه وشو.

مرحوم ملامحمد عمر مجاهد د اسلامي نړۍ په کچه یو محبوب رهبر و چې په وفات سره یې ډېر زړونه وردردیدل او د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه یې خلکو په وفات غمرازي ښکاره کړه.

د افغانستان د اسلامي امارت رهبري شورۍ او د نوموړي د کورنۍ لخوا د مرحوم د وفات په مناسبت په نشر شوي اعلامیه کې راغلي دي: مرحوم ملامحمد عمر مجاهد چې د امریکا په مشرۍ د نړیوال کفري یرغل له ټول فشار او تعقیب سره سره په هیواد کې اوسېده او پر افغانستان د امریکایي یرغل له پیل څخه تر وفات پورې اوږده موده کې حتی د یوې ورځې لپاره هم له افغانستان څخه بهر پاکستان یا کوم بل هیواد ته نه دی تللی او له خپل میشت ځای څخه یې د اسلامي امارت چارې رهبرې کولې چې د نوموړي په دې ستر استقامت او له هیواده په نه وتلو کره شواهد او دلایل موجود دي څه موده وړاندې د وړپیښې شوي ناروغۍ له امله چې د ناجوړۍ په وروستیو دوه اونیو کې یې سختې زیاته شوه په حق ورسید.

مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله اسلامي امارت د یوه ستر خوځښت په حیث په داسې ډول ودان کړی او روان کړی چې ترشا یې جوړ او محکم بنیادونه ، مخلص او باتدبیره ملګري او منظم تشکیلات پرې ایښي دي لهذا مجاهدین او ټول مسلمانان دې مطمئن اوسي، چې دا کاروان به د اسلامي امارت د نوي امیر تر قیادت لاندې ټول مسؤلین او افراد د الله تعالی په نصرت او د مسلمانانو په ملاتړ د عالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله له ارمانونو سره سم منزل مقصود ته رسوي ان شاءالله تعالی و ماذالک علی الله بعزیز  والسلام

# د ملا محمد عمر په اړه د حامد میر لیکنه

د ملا محمد عمر د ژوند او مړیني اصلي کیسه لا تر اوسه نه ده ښکاره شوې. دښمنانو یې د سر بیه ۱۰ ملیونه ډالر ایښی و، مګر هغوی پر خپلو ډالرو او پر مختللي ټیکنالوژي ونه توانېدل چې د هغه ادرس مالوم کړي او نن د بندو دروازو تر شا یو د بل مخې ته اعتراف کوي چې د ملا محمد عمر د بندي کولو او یا په میزایل د ویشتلو خوب یې پوره نه سو.

د ملا محمد عمر ژوند د هغه د دښمنانو لپاره شکست و او د هغه مړینه هم د هغه د ځواکمنو دښمنانو لپاره د شکست او ماتي اعلان!

د ملا محمد عمر د ژوند او مرګ پر نابشپړي کیسې د طالبانو پر راتلونکي شننه او تحلیل کول یو ناممکنه کار دی او ځان غلطول دي.

د پام وړ خبره خو دا ده چې امریکا ته ډېر مطلوب کس چې د تیښتې په حالت کې او د نړۍ مخې ته د نه راتلو په حالت کې بیا هم وتوانېد چې طالبان دومره قوي کړي چې د امریکا غوندي قوي هیواد هغوی سره د مذاکراتو لپاره تیاره سي؟

د امریکې د تینک ټینک برو کنګز انسټي ټیوټ له یوې نوې څېړني سره سم له ۲۰۰۱ څخه تر اوسه، ۲۰۱۵ پوري د هغوی لپاره تر ټولو زیات ستونزمن کال وو، ځکه چې په دغه کال کې طالبان د افغانستان له جنوب څخه بیا تر شمال پوري په هر کونج کې ځانته ځای وموند او هلته پراخه سول.

یوه اړخ ته د افغانستان ځمکني حقایق دي او بل اړخ ته د ملا محمد عمر او طالبانو په اړه د ګنګوسو یو توپان جوړ دی، امریکا د ګنګوسو له لارې په نړیوالي میډیا کې پروپاګند کوي چې دوی جګړه کټلې ده، خو ملا محمد عمر یو ځمکني حقیقت جوړ سو او د امریکا په مخ کې یې مقاومت وکړ.

د ملا محمد عمر مجاهد ژوند او مړینه اکثره د ګنګوسو په مخ کې وه.

زه په دې اعتراف کوم، ډېر کلونه مخکې چې طالبان په افغانستان کې را پورته سول، ما ویل امریکا یې حمایت کوي، ځکه چې هغه وخت د امریکا د وزارت خارجې مرستیال رابن رافیل د طالبانو حمایت کوی، په ۱۹۹۵ کې د پاکستان لومړۍ وزیرې، بینظري زما د غلط فهمي دلیري کولو کوشش وکړ او د هغې وزیر داخله نصیر الله بابر ماته وویل چې پیپلز پارټي د طالبانو د حکومت حمایت د دې لپاره کوي ځکه چې د شمالي ټلوالي والاوو په کابل کې د پاکستان پر سفارت برید وکړ او طالبانو د پاکستان د ګټو د ساتني په خاطر وعده کړې وه.

د نصیر الله بابر په واسطه مې د ملا محمد عمر سره پیژندګلوي وسول، نصیر الله بابر د برهان الدین رباني، احمد شاه مسعود، حکمتیار او رشید دوستم سره هم ښې اړیکي لرلې.

هغه د طالبانو او د شمالي ټلوالي تر منځ د جوړجاړي لپاره هلي ځلي کولې، تر څو په افغانستان کې امنیت راشي او د افغانستان له لاري تر کمنستان څخه د ګیسو د پیپونه وارد کړل سي.

د امریکې یوه شرکت، یونیکال غوښتل چې د طالبانو له لارې دغه پلان کامیابه کړي، مګر طالبان د چا د لاسه آله نه وو او نه دې ته تیار وو چې د لاس آله سي.

په ۱۹۹٦ کې طالبانو خپل پوځي قومندان ملا محمد عمر څخه امیر المؤمنین جوړ کړ، د ۱۹۹٦ د اپریل په میاشت کې رابن رافیل قندهار ته سفر وکړ، خو ملا محمد عمر په شمالي ټلوالي کې د خپلو دښمنانو د ویرولو په خاطر د رابن رافیل سره د یوه انځور اخیستلو ضرورت هم محسوس نه کړ، بلکې د هغه پر

ځای یې خپل معاونین د ملاقات لپاره ور ولیږل.

د ۱۹۹۶ د سپټمبر میاشتي په ۲۶مه نیټه طالبانو کابل فتح کړ. د همدې کال د نومبر په ٦مې طالبانو په اسلام اباد کې له شمالي ټلوالي سره د مذاکراتو لپاره چمتووالي وښود او نصیر الله بابر د یوه جوړجاړي پریکړې لپاره مسوده هم تیاره کړې وه، مګر د نومبر په ۵مه د پوځ له خوا د بینظیري حکومت پرنګ کړل سو او په دې توګه دغه مذاکرات وځنډېدل او دواړه اړخونو یو بل ته د نیژدې کیدو موقع له لاسه ورکړه.

په نړیوالي میډیا کې دا تاثر ور کول کیږي چې د پاکستان استخباراتي اداري (آی ایس آی) طالبان سره منظم کړل او پاکستان ملا محمد عمر پټ کړی وو.

د طالبانو په جوړښت کې آی ایس آی هیڅ کردار نه دی لوبولی، بلکې په ۱۹۹۴ کې آی ایس آی د طالبانو د یوه بل ډیر لوی مخالف ګلبدین حکمتیار سره ډیري نیژدې اړیکې وې، له طالبانو سره ابتدایي اړیکي نصیر الله بابر جوړې کړې وې، د هغه وروسته د لومړي وزیرې بینظیري په غوښتنه د آی ایس آی مشر جنرال جاوید اشرف قاضي طالبانو ته دعوت ورکړ چې اسلام اباد ته سفر وکړي، خو ملا محمد عمر اسلام اباد ته د سفر څخه معذرت وغوښت او خپل یو څو ملګري یې اسلام اباد ته راولیږل. په دغه ملاقات کې طالبانو د آی ایس آی او حکمتیار تر منځ پر اړیکو اعتراض وکړ. له هغه وروسته پاکستان د طالبانو ښه حمایت پیل کړ.

ملا محمد عمر چې څومره موده پر کابل واکمن وو، هغه د پاکستان ګټې په پام کې نیولې، خو نه یې هم د پاکستان څخه او نه یې هم د سعودي څخه امرونه قبول کړل، که څه هم دغه یوازیني هیوادونه وه چې د دوی حکومت یې په رسمیت منلی وو.

په ۱۹۹۷ کې د افغانستان د طالبانو یو پلاوی ته د امریکې د سفر دعوت ورکړل سوی وو، په همدې موده کې د عربو د یوې خیریه موسسې له لاري طالبانو ته داسې ترغیب ورکول سوی وو چې چین سره باید د سینکیانګ ایالت د مسلمانانو په هکله مرسته وکړي، که داسې وکړي نو دوی ته به ډیره زیاته ګټه وکړي.

د دې سازش په ناکامولو کې د پاکستان یوه دیني عالم مفتي نظام الدین شامزئي (وروسته کراچي کې شهید کړای سو) او مولانا فضل الرحمن خلیل ډیر مهم رول ولوباوه.

څه موده وروسته په پاکستان کې د چین سفیر لوشولین قندهار ته سفر وکړ او هلته ملا محمد عمر دغه سفیر ته اطمینان ورکړ چې طالبان به د چین په خلاف د یوه سازش حصه هم جوړ نه سي.

بل اړخ ته د پاکستان او سعودي د حکومتونو له خوا طالبانو سره په اړیکو کې بی خوندي راغلې وه، د سعودي د استخباراتو مشر ترکي الفیصل د ۱۹۹۸ په جون کې او بیا د همدې کال په سپټمبر کې ملا محمد عمر سره دوه ملاقاتونه وکړل او غوښتنه یې وکړل چې اسامه بن لادن دې د افغانستان څخه وایستل سي.

ملا محمد عمر انکار وکړ، کله چې ترکي الفیصل پر ملا محمد عمر د فشار راوړلو هڅه وکړل، نو ملا محمد عمر یو صحرایي پښتون په توګه ورته داسې سختې خبرې وکړلې چې له کبله یې ترکي الفیصل باندي خولې را ماتي سولې.

په همدې موده کې د آی ایس آی مشر جنرال ضیاء الدین بټ ملا محمد عمر ته ولیږل سو، د ملاقات مقصد اسامه بن لادن وو، بټ هم ناکامه را وګرځېد.

ملا محمد عمر د اسامه په خاطر خپله واکمني په خطر کې اچولې وه، د ۱۹۹۹ د اګست په میاشت کې د ملا محمد عمر پر کور د یوه لوی باروړونکي موټر په واسطه چاودنه وسول، چې په ترڅ کې د هغه د یو زوی او میرمنې په شمول د کورنۍ څلور غړي ووژل سول، ملا محمد عمر خپله هم معمولي ټپي شو، مګر د دې برید وروسته د امریکا په اړه د هغه موقف کې نوره سختي هم راغله.

د همدې برید په جواب کې اسامه بن لادن د امریکا د تجارتي مرکزونو او پنټاګون د بریدونو طرحه جوړه کړه، مګر ملا محمد عمر د دغې طرحې څخه بې خبره وو.

د ۲۰۰۱ د سپټمبر په ۱۱مه په امریکا د اسامه بریدونو نه صرف د القاعده او ملا محمد عمر لپاره بلکې د ټولي نړۍ د مسلمانانو لپاره ستونزې زیات کړل.

د همدې میاشتي په ۱۲مه جنرال پرویز مشرف د آی ایس آی مشر جنرال محمود احمد ملا محمد عمر ته ولیږه او غوښتنه یې وکړل چې اسامه بن لادن دې له هیواده وشړي. ملا محمد عمر ډیر سخت خفه وو چې اسامه بن لادن د هغه اطاعت ونه کړ، خو بیا یې هم جنرال محمود احمد ته د «نه» جواب ورکړ.

اوس د پاکستان او سعودي په شمول ټوله نړۍ د طالبانو په خلاف سره متحد سول، د همدې کال په نومبر کې د طالبانو د واکمني تر

ړنګېدو څو ورځې مخکې ما په کابل کې د طالبانو د وزير داخله ملا عبد الرزاق څخه وپوښتل چې تاسو د اسامه بن لادن په خاطر خپله واکمني له لاسه ورکول غواړئ؟

هغه جواب راکړ چې د دوی مشر ملا محمد عمر ته تر واکمني د افغانستان د خلکو عنعنات زيات مهم دي.

څو ورځې وروسته د طالبانو واکمني ختم سول، مگر طالبان ختم نه سول!

د طالبانو د نه ختمېدلو لويه وجه د هغوی طبقاتي رول دی، د نړۍ په نزد دا يو سخت دريځی مذهبي تحريک دی، خو په حقيقت کې دا د شتمنو قومي مشرانو، ظالم او مفسدو قومندانانو او جنگسالارانو په خلاف د عادي افغانانو او دهقانانو يو وسله وال تحريک دی، د دوی مشر هيڅ داسي څه نه لري چې د هغه پر ختمېدو دي ووېريږي.

ملا محمد عمر په ۲۰۱۲ کې خپله تگلاره بدله کړل، هغه د شمالي افغانستان د تاجکانو، اوزبک، او هزاره گانو سره اړيکي پراخي کړلې، د باميانو، دای کنډي او غزني شيعه گان يې هم له ځانه سره ملگري کړل او دايران سره يې هم ښې اړيکي جوړي کړلې.

اهل تشيع او ايران سره د خپلې پاليسيو په بدلون دوی دا ثابته کړل چې د پاکستان او افغانستان د طالبانو تر منځ ډير ژور فرق دی.

د ۲۰۱۵ د مې په مياشت کې د طالبانو يو مهم پلاوي ايران ته سفر وکړ، چې د کابل حکومت وزير داخله نور الحق علومي چې د شمالي ټلوالي نمايندگي کوي، خپل ژور خپگان ځرگند کړ، که چيري طالبان ايران ته نه تلای، نو د افغانستان استخباراتو شايد د ملا محمد عمر د مړيني خبر نه وای راپورته کړی.

نور الحق علومي پخوانی کمونيسټ پوځي جنرال دی او ډاکټر نجيب د حکومت په دوره کې د کندهار والي وو.

د کابل حکومت سره د مذاکراتو د پيليدو باوجود د طالبانو د شريعت مجله پر علومي باندي ډير شديد انتقاد کړی، ځکه چې علومي په بندي خانو کې د طالبانو پر بنديانو باندي تشدد او سختي زياته کړې، د علومي د سخت دريځۍ او مشکوک چلند څخه طالبان په مذاکراتو کې هم ډير محتاط دي او په مقابل اړخ کې د افغانستان ملي امنيت هم د مذاکراتو په اړه سنجيده نه ښکاري. نړيوال قوتونه چې په افغانستان کې د طالبانو او حکومت تر منځ مذاکراتو ته ډيره ليواله دي، بايد په ياد ولري، چې په دغه مذاکراتو کې به د هغوی لپاره د څو وزارتونو په واسطه د طالبانو رانيول ډير گران کار وي. د طالبانو په کمزوري کولو او د داعش په تقويه کولو به کله هم افغانستان ته امن رانه شي، د گنگوسو له لارې د ميډيا جگړه گټل کيدای شي، خو افغانستان په ليري پرتو کليو او غرنۍ سيمو کې ځمکني حقايق نه شي بدليدای. د ملا محمد عمر نوم او د طالبانو غرني او صحرايي جنگيالي به د کابل پيسه داره واکمنانو په مخ کې هر وخت ځمکني حقيقت جوړيږي او دردوی خوبونه به حراموي.

# دملامحمدعمر تر ټولو ستره لاسته راوړنه

لیکوال : پامیر زیارمل

په ۲۰۰۲-م زیږدي کال کې زه د طالبانو د نظام له پرزیدلو وروستی د لومړي ځل لپاره نوي افغانستان ته ستون شوم او خپل پلرني ټاټوبي کندهار ته مې ډېر په زړه پورې سفر وکړ. د لوی کندهار له سفر څخه وروسته ، کله چې زه بېرته مسکو ته راغلم، سمدلاسه مې «طالبان په لنډ راتلونکي کې وسله وال پاڅون کوي» تر سرلیک لاندې لیکنه وکښله. په دې لیکنه کې ما وړاندوینه کړې وه، چې طالبان به ډېر ژر په تش لاس، خو ډک زړه د افغانستان د ګاونډیو په ګډون د نړۍ له پینځوسو سترو هېوادونو سره جګړه پیل کړي. هغه مهال ټولو افغانانو او نړیوالو داسې انګېرل، چې پر افغانستان باندې د امریکایانو او د هغو د ملګرو یرغل د طالبانو ټغر د تل لپاره ټول کړ او د هیڅا زړه ته نه لوېدل، چې طالبان به وکولای شي یو ځل بیا سر پورته کړي.

ما خپله لیکنه ځینو رسنیو ته واستوله، خو ټولو په یوه خوله را ته وویل، چې دا لیکنه نه خپروي. هغه مهال زه شپاړس کلن تنکی زلمی وم او په ښوونځي کې مې زده کړه کوله، نو ښکاره خبره ده، چې چا زما وړاندوینې ته په درنه سترګه نه کتل. د یوې رسنۍ پازوال چلوونکي ما ته داسې لیکنی ځواب راولېږه: «زویه، کله چې په شونډو کې دې د مور شیدې وچې شي بیا هغه مهال داسې لیکنې وکاږه! طالبان هېر کړه، دوی نور نشته، هیڅوک او هیڅکله د دې زړورتیا نه کوي، چې په نړۍ کې له ټولو ځواکمن او غښتلي هېواد امریکا سره مخامختیا وکړي! خو ته لیکې، چې طالبان به یو ځل بیا وسله وال پاڅون وکړي او امریکایان به له افغانستان څخه وشړي! ته ماشوم یې او په نړیوال سیاست او پوځي چارو نه پوهېږې! هر کله چې دې ښوونځی ولوست او په پوهنتون کې دې زده کړې وکړې بیا راشه زه تا ته په خپله ورځپاڼه کې دنده او لوړ معاش در کوم، خو اوس ما ته نور داسې لیکنې مه رالېږه!». څو کاله وروسته ټولو د سر په سترګو ولیدل، چې طالبانو یو ځل بیا وسله په لاس واخیستله او له امریکایانو سره یې جګړه پیل کړه.

په ۲۰۱۰-م زیږدي کال کې ما «طالبانو د افغانستان په ټبریزه جګړه کې پای ټکی کېښښاوه» تر سرلیک لاندې لیکنه وکړه. په دې لیکنه کې ما ټینګار کاوه، چې طالبان به ډېر ژر نه یوازې د افغانستان په پښتون مېشتو سیمو کې، بلکې د شمال په ګډون د هېواد په ګوټ ګوټ کې ولسوالۍ او آن ولایتونه تر خپلې ولکې لاندې راولي. په لیکنه کې راغلي وو، چې د افغانستان په اوږده جګړه کې لوی بدلون راغلی دی او خپله پخوانۍ بڼه یې اړولې ده. د لیکنې په یوه ځای کې ما داسې لیکلي وو: «د جګړه ځپلي افغانستان د څو لسیزو په پر له پسې جګړو کې نوی څپرکی پرانېستل شوی دی. طالبانو وکولای شول، چې د افغانستان په شمال کې ګڼ پلویان ومومندي او په دې توګه دوی په ټبریزه جګړه کې پای ټکی کېښښاوه. له دې څخه وروسته به په افغانستان کې د ایډیالوژیو جګړه وي او د شخړې هغه لوری به بریالی شي، چې تر ټولو لوړ مورال او پیاوړې ایډیالوژي لري.«

ما دا لیکنه د مخکنۍ په څېر ځینو رسنیو ته په دې هیله ورولېږله، چې دوی یې خپره کړي، خو بیا هم ټولو په یوه خوله را ته وویل، چې دا لیکنه نه خپروي. د یوې خپرونې چارمن داسې ځواب راولېږه: «ستاسې له لیکنې څخه یوه نړۍ مننه، خو موږ یې نه خپروو. تاسې لیکئ، چې طالبان به د افغانستان په شمال کې، چېرې چې تاجکان، اوزبکان او نور ډېری دي، پراخې سیمې تر لاس لاندې کړي. زه افغانپوه نه یم، خو بیا هم ښه پوهېږم، چې دا ناشونی دی، ځکه چې طالبان پښتانه دي او هیڅکله د افغانستان په شمال کې یو لوېشت خاوره هم نه شي نیولای.

تاسې وایاست، چې د افغانستان شمالي بدخشان ولایت به د طالبانو نوې منځۍ شي او د جګړې نوی ډګر به وي. خو ټول خبر دي، چې بدخشان یوازینی ولایت و، چې د طالبانو د واکمنۍ په مهال د شمالي ټلوالې تر څارنې لاندې و. لنډه دا، چې تاسې د افغانستان په تېریز جوړښت نه پوهېږئ!». نن موږ ټول وینو، چې د افغانستان شمال د جګړې تر ټولو تود مورچل دی.

په ۲۰۱۴-م زېږدي کال کې ما «طالبان د مشر بدلولو ته چمتووالی نیسي» تر سرلیک لاندې لیکنه ولیکله. په دې لیکنه کې ما په نړۍ کې د لومړي ځل لپاره له لوړو پوهنیزو معیارونو سره سم اعلان وکړ، چې د طالبانو مشر ملا محمد عمر مړ دی (له دې څخه وړاندې یوازې څارګرو ادارو د طالبانو د مورال د کښته کولو لپاره بې بنسټه هر کال د ملا عمر د مړینې خبر ورکاوه). زما لیکنې ټول پوهان او څېړونکي هېښ کړل، خو بیا هم د دې پلا بې شمېرو رسنیو زما څخه هیله وکړه، چې د لیکنې د خپرولو اجازه ورکړم (تاسې دا لیکنه په روسي ژبه دلته لوستلای شئ : http://www.mgimo.ru/news/experts/document264196.phtm).

د دې لیکنې له لوستلو وروسته ګڼو افغانپوهانو او رسنۍ والو زما څخه هیله وکړه، چې د ملا محمد عمر تر مړینې وروسته د طالبانو د غورځنګ د برخلیک په اړه لیکنه وکړم. ما هم «د ملا محمد عمر تر ټولو ستره لاسته راوړنه» تر سرلیک لاندې لیکنه وکښله، خو تر نن ورځې مې زړه دې ته نه ښه کاوه، چې خپره یې کړم، خو اوس کله چې طالبانو په رسمي توګه د خپل مشر مړینه ومنله، زه ستاسې پاملرنې ته د دې لیکنې لنډیز وړاندې کوم. په دې لیکنه کې هم ځینې وړاندوینې شوې دي، چې یو شمېر لوستوال به هک پک کړي، خو راتلونکی به دا په ډاګه کړي، چې زما انګېرنې څومره کره وې:

د ملا محمد عمر تر ټولو ستره لاسته راوړنه

له هراړخیزو او ژورو څېړونو او پلټنو وروسته زه دې پایلې ته ورسېدم، چې د افغانستان د طالبانو د اسلامي غورځنګ بنسټوال او د اسلامي امارت مشر ملا محمد عمر مړ شوی او یا وژل شوی دی. که څه هم چې زه په کره توګه د هغه د مړینې نېټه نه شم ویلای، خو داسې انګېرم، چې هغه یو کال مخکې د تل لپاره دې نړۍ ته سترګې ترلې دي. د ملا محمد عمر مړینه د افغانستان د تاریخ د یوه پېر پای او د بل پیل دی، چې نه یوازې د افغانستان، پاکستان، سیمې، بلکې د ټولې نړۍ پر سیاسي او پوځي چارو به ژوره اغېزه وکړي.

که ملا عمر په رښتیا هم مړ وي، نو دا خبره د طالبانو د سیالانو او تر هر څه لومړی د امریکایانو لپاره د ډېرې خوابدۍ او خواشینۍ وړ ده. له پتمنو لوستوالو سره به دا پوښتنه پورته شوې وي، چې ولې د پېژندل شوي غلیم مړینه به امریکایان او د دوی په لاس د کابل جوړه شوې ښواکه او کاواکه اداره خوابدي کړي؟! د دې پوښتنې ځواب به تاسې د دې لیکنې په لاندېنیو کرښو کې ومومئ.

د افغانستان او نړیوال پېښلیک څرګندوي، چې ټول هغه سیاسي غورځنګونه او ګوندونه، چې خپل مشر دلاسه ورکوي، هغوی یا په بشپړه توګه له منځه ځي او یا نوښت بایلي او بالاخره ماتې خوري. د بېلګې په توګه، کله چې په ۲۰۰۱ کال کې د شمالي ټلوالې ځینو غړو د باندنیو څارګرو ادارو په لارښوونه او څار بولندوی احمد شاه مسعود جهنم ته واستوه، دغه کړغېړنه ټلواله عملاً پر ځوبرځو وپشل وشوه او پخوانی نفوذ یې دلاسه ورکړ.

بله غوره بېلګه د عراق برغزی واکمن صدام حسین دی. د صدام وسله وال ځواکونه نه نوازې په سیمه ییزه، بلکې په نړیواله کچه ډېر ځواکمن ګڼل کېدل. خو له پلازمېنې بغداد څخه د صدام تېښتې او بیا د هغه له اعدام څخه وروسته د عراق پخواني پیاوړي ځواکونه له منځه لاړل او ولسمشر صدام حسین د تاریخ د پاڼو یوه برخه شو، چې د هغه د کړو په اړه به قضاوت راتلونکی پښت او په الهي نیاوتون کې لورین الله کوي.

که ملا عمر مړ وي، نو موږ دا پایلیوی کولای شو، چې طالبان د خپل مشر په نشتوالي کې هم په اټوماټیکي ډول په بریالۍ توګه خپلې سیاسي او پوځي چارې مخته بېولای شي او دا په خپل وار د دې ویندوی دی، چې ملا عمر شبکه ییز غورځنګ پنځولی دی، چې هیڅکله ماتې نه خوري، ځکه چې په دا ډول اداري جوړښت کې یو سړی، هر څوک چې هم وي، د غورځنګ یا ګوند پر ژوند ډېره اغېزه نه کوي.

د شبکه ییز جوړښت یوه ځانګړنه دا ده، چې د یوې شبکې د مشر او یا د ټولې شبکې نسکورېدل په ټولیزه توګه پر غورځنګ ډېره ناوړه اغېزه نه کوي. که د ملا عمر تر مشرۍ لاندې شبکه ورکه شي، د هغې ځای د بل طالبي مشر شبکه نیولای شي. د نوي مشر له مړینې وروسته د هغه ځای بل نیسي او دا لړۍ هیڅ پای نه لري.

که ملا عمر له يوه کال څخه ډېره موده مړ وي، نو موږ په ډاګيزه توګه ويلای شو، چې د هغه د چاروالي تر ټولو ستره لاسته راوړنه او وياړنه دا د شبکه ييز غورځنګ پنځول دي، چې د ده له مړيني وروسته هم ژوندی دی.

سياسي شبکه ييز جوړښت يوازې د شلمې پېړۍ په ۹۰-مه لسيزه کې د سياسي پوهنو د يوې څانګې برخې په توګه بېل شو. سياسي شبکه ييز جوړښت ته ډېره پاملرنه په انګليسي او الماني سياسي ښوونځيو کې کېدله. په دې برخه کې ټولمنلي پوهان دغه دي: ر. کېللـي، ر. رودز، د. مـارش، ت. بورتځيـل، ج. هاکنسـون، ج. جوهانسـون او نور.

که څه هم چې د سياسي شبکه ييز جوړښت په هکله ګڼ کتابونه او ليکنې شوي دي، خو زما په اند، د طالبانو شبکه ييز جوړښت ځينې ځانګړتياوې لري، چې بايد په ډېره څېړکتيا وسپړل شي. يوه ځانګړتيا يې دا ده، چې د طالبانو مشران او تر ټولو مخکې ملا عمر له ځانښودنې ډډه کوي او خپل پلويان او لارويان دې ته رابولي، چې د دوی لپاره نه، بلکې د ايډيالوژۍ لپاره سرښندنه وکړي.

په پای کې دا ډېروم، چې زه ډاډمن يم، که طالبان په خپل سياسي شبکه ييز جوړښت کې بدلون را نه ولي او لکه اوس د يوه ځانګړي مشر پر ځای ايډيالوژۍ ته لومړيتوب ورکړي، نو دوی به هيڅکله د شمالي ټلوالې په څېر په سياسي او پوځي ډګرونو کې ماتې و نه خوري.

# زېرى . . . زېرى

د ايمان زرينې غشي
چالمر مخو ورولي
ار ګ له قهره
ار ګ له قهره
لکه کفر تور او شين دی
په بچوېې جوړ ناورين دی
لمرپلوې ياره مخ ته دې ګلونه
غځوه د رڼامزي
لکه ستاد څنو منځ کې
د تيارو په زړه کې لاره
خدای در کړی ښه تلقين دی
د برېښنا نيلی دې زين دی
تندريز هيبتي غږ دې
د خزان هڅونه مات کړل
د آدم شمله ده لوړه
قيادت ته دې ملکو غاړه ايښې
د شيطان په لړمانه کې اور بلېږي
ته خوره د تکبير کړيکه
زه دې ژبه د ګړنګ شم
دغه زړه مې په واک نه دی
نه چې ستا په لور در ړنګ شم
د رحمان بابا په قول:
ملنګي د يار په در کې پيغور نده
اجازه ده!
چې زه ستاد در ملنګ شم !؟
*******
غنمرنګه، غنمرنګه!
له غنمه ده راپېښنه
د غنم کيسه به پرېږدو
نه چې بيا بيا زړونه بايلو
جنت هم د رپسې پرېږدو
د نيمګړې دنياګۍ کيسه راواخله

بس د هغې ښاپيرۍ کيسه راواخله
د واده په لومړۍ ورځ چې
ځناورو کړه په ښنه
چې پر هر يې په باچاپسې خندل
چې يې شونډې د زړ ګي په وينو سرې وې
چې يې ستر ګې په رڼو اوښکو لمدې وې
چې ملکو يې جنازه په اوږو بار کړه
چې ترې پاته شوي يو څو مهم سوالونه
زه رښتيا وم دهشتګره ؟
اې د غرب بشر پالانو!
زه حصه د بشر نه وم ؟
ښځينه حقوق غوښتونکو!
زما حق د ژوندون نه و؟
ها قرآن چې د حمزه وينې ترې ځار شوې
چې رخسار د پيغمبر پرې شهيد شوی
ها د خدای خوږې خبرې
چې ملکې به صف صف ور سره تللې
چې يې ښځو ته ژوندون دی وربښلی
په رخسار کې د عثمان د وينو رنګ و
چې بشر ته يې سکون دی وربښلی
ولېم! وويشت په ګوليو ؟
ولې مو سرې لمبې ترې تاو کړې ؟
ولې مو کيښود انسانيت ته د پای ټکی ؟
ګنګوره ژبې مو پرې شه
ولې ګونګ ياست شيطانانو
ها زما سکنې وروڼه
هاغه ستاد ستر ګو خلې
ها د عزم لوړ لوړ څلې
راته وايه ها به څرنګه قانع کړئ
دامنې ؟
چې د قرآن شهيدې پاڼې به کړې هيرې
دامنې چې زما وينې کړې هدر
نه نه
نه

# ثاني بت شکن

ليکوال: احمدارشاد سعيد

باميان د افغانستان په مرکز کې د هندوکش د غرونو د لړۍ په لويديځ او د بابا غره په شمال کې پروت ولايت دی چې د بحر له سطحې څخه د دريو زره مترو په شاوخوا لوړ موقعيت لري.
يخ او واورين ژمي او نرم معتدل اوړی لري او د هيواد يو له هغو ولايتونو څخه دی چې قديم او پخوانی تاريخ لري. په دې ولايت کې د بودا د دوو مجسمو او امير بند يا د افغانستان لومړنی پارک شتونددې ولايت په تاريخي والي دلالت کوي چې د زياتو سياحانو پام يې ځان ته را اړولی دی.
د صلصال لويه مجسمه چې **۵۳** متره لوړوالی او د (شمامه) په نوم بله وړوکې مجسمه چې **۳۸** متره لوړوالی لري د ۲۰۰۱ کال د مارچ په ۱۱ نېټه د افغانستان د اسلامي امارت له لوري له منځه ولاړې او په نړۍ کې يې يو ځل بيا هير شوی ابراهيمي سنت راژوندی کړی. دې پېښې نړۍ و لړزول او د بودايي هيوادونو په شمول نوري کفري نړۍ ته يې دا ور وښودل چې افغانان د بتانو په وسيله د جمع شوي سرمايې تږي نه بلکې د اسلامي شريعت پالونکي دي.
دا پيښه د کفري هيوادونو په تقليد سره د اسلامي هيوادونو ځينې بې دينو اشخاصو هم و غندل او دا يې تاريخي آثارو ته نه پاملرنه او د هغوئ بې قدري وبلل. اوس هم د ځينو اشخاصو له خولې نه دا پيښه په پوره پيمانه غندل کيږي او د افغانستان اقتصاد ته په پاملرني سره دا يوه غلطه پريکړه ګڼي. نه پوهيږم دا اشخاص له دينه ناخبره دي او که د دينه خبر دي خو دنيا پرستي، دومره تير ايستلي دي چې دين يې ترينه هير کړی دی. دا منو چې دا بوتان به تاريخي آثار وه خو د تاريخي آثارو نوم چا ورباندې کيښودی؟ هغه دين چې د کتاب نيمه او لا زياته برخه يې د بوتانو او د الله ج نه بغير إله جوړولو په رد کې راغلې، د هغه دين پيروان نن څنګه ددې ډبرو شتون د تاريخي آثارو تر نامه لاندې جائز ګڼي؟ ددې ډبرو په وسيله پيسې لاسته راوړل آيا د بې حيايې او فحاشی په واسطه د پيسو لاسته راوړلو څخه لويه ګناه نه ده؟ ايا دا نظريه د کپټاليزم له تصور سره چې د خلکو نه په هره لاره که په حلاله طريقه وي که په حرامه د پيسو پيدا کولو تقاضا کوي کوم توپير لري؟
افغان ملت د بوتانو په ماتولو کې ډير پخوانی تاريخ لري چې ددې تاريخ د سپسالارانو څخه يو هم لوی سپسالار فاتح او مجاهد شخصيت سلطان محمود غزنوي دی. ده رحمه الله ته هغه وخت د بت شکن لقب ورکړل شو چې کله يې د ۴۱۲ کال د ذی القعدې په مياشت کې د هند د ګجرات نه وروسته سومنات نومي سيمي ته ځان و رساوه او هلته يې د هندوانو تاريخي بت چې هغه هم د سومنات په نوم ياديده په خپل لاس دړې وړې کړی. له دې ځايه فهمولای شو چې د افغانستان د اسلامي امارت د زعيم مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد (رحمه الله) په امر د باميان د بتانو ويجاړول په اصل کې د اسلامي شريعت د تقاضا سربيره د سلطان محمود غزنوي پر قدم پښه ايښودل او د هغه په پله تلل دي. الله جل جلا له دې د تقوا ددې سمبول، ثاني بت شکن مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله قبر د جنتونو له باغچو نه يوه باغچه و ګرځوي. قربان له هغې خاورې چې يو ځل بيا يې تاريخ ته د سلطان محمود غزوي رحمه الله بل ښکاره مثال وړاندې کړ. ومن الله توفيق

ژباړه: موسی فرهاد

# ملا محمد عمر او جورج بوش!

لیکواله: طیبه ضیاء .....

څخه نیولي، د عراق تر بریده پوري امریکا نژدې د دوه سوه یرغلونو ارتکاب کړی.

مشهور لیکوال ګور وائډل د یوولسم ستمبر په اړه تنقیدي تأثرات په کتابي بڼه ولیکل مګر پر خپریدلو یې په امریکا کې بندیز ولګیدی او بیا په جرمني کې چاپ شو .

د کتاب تر تصنیف وړاندې یو امریکایي تروریست ټم تی میک وی په اوکلاهوما کې یوه لویه ملي ودانۍ په بم والوزوله ،(چې په امریکا کې د هغه دا عمل د خپلو حقوقو دفاع وګڼل شوه ) پر همدې موضوع لیکوال وائډل ولیکل چې د اسامه بن لادن او ټم تیمیکوی د کړني ترمنځ څه توپیر و ؟ خو تش په نوم د آزادۍ دعویدار امریکا پر هغه بندیز ولګاو ، حتی چې د امریکا په لویه ورځپاڼه (دي نیشن ) کې یې پر خپرولو هم بندیز ولګیدی چې خپله لیکوال د یادې ورځپاڼې مرستیال هم وو .

وائډل پخپل کتاب کې لیکلي چې زموږ حکومتي پالیسۍ ثابته کړه چې پر کرکې ، نفرت او نا انصافي ولاړه پالیسي ده ، ځکه چې د اسامه بن لادن او ټم تیمیک وی کړني یې په یوه تله و نه تللي .

حالانکه میک وي هم د ملکي آزادۍ یعني د خپلو خلکو د حقوقو د ترلاسه کولو لپاره قرباني ورکړه ، او د اسامه بن حمله هم د مسلمانانو د حقوقو د ترلاسه کولو پخاطر وه ، همدا وجه ده چې په اسلامي نړۍ کې د اسامه خواخوږي هیڅکله کمه نشوه .

خو امریکا دا موازنه برداشت نکړه ، بلکې د اسامه بن لادن حمله یې تروریستي عمل وباله او د میک وي، دا ، نه .

## نیویارک

ملا عمر او جارج بش د تاریخ داسې دوه نمونه دي چې له تصادم څخه یې د اور سرې لمبې پورته شوې ، د وینو ویالې ترې وبهیدې ، د ظلم داسې داستانونه یې ثبت کړل چې له امله یې تش په نوم مهذبو قدرتونو د تل لپاره خپل مخونه تور کړل. د یو لیرې پراته وطن او سیدونکي ، د هغوی مذهبي اقدار او ملي عنعنات یې په دې وجه تباه او برباد کړل چې پردې دي .

د آزادۍ په نوم یې د سولې او امن جرړې وایستلې ، موږ ته هغه ویرووونکي صحنې او شیبې بڼه یادې دي چې د امریکایي چینلونو پر سکرینونو به مو کتلې او اوریدلې چې یو دجال د مسیحا په بڼه افغانستان ته رسیدلی ، د یو انسان په پلمه په لکونو انسانان د هستۍ له صفحې څخه ترې تم کوي .

د غه کینه او کرکه دلته هم ختمه نشوه ، بلکې د زروي وسلو په بهانه یې پر بله ځمکه د مرګونو او وحشتونو لړۍ پیل کړه ، په داسې حال کې چې د افغانستان له غرو او رغو څخه د مظلومانو آه او فریاد لا اوس هم اوریدل کیږي. د امریکایي تاریخ پوه چارلس برډ یوه مقوله ده چې وایي: د تل پاتې امن لپاره تلپاتې جګړه اړینه ده ، له ۱۹۴۵

ښاغلی وایډل په خپل کتاب کې وړاندې لیکي: چې امریکه د هیټلر تاریخ تکراروي ، او غواړي چې پر نړۍ خپله باداري په زور ومني .

ولسمشر بوش وایي ، د تروریزم پرضد جګړه د بدۍ پرضد جګړه ده ، او په اصل کې دا یو پوچ خیال دی . یکاردا ده چې د میک وی او اسامه بن لادن کړنو ته په یوه نظر وکتل شي ، چې دواړه د امریکا د کړنو عکس العمل وبلل شي . ویلای شم چې د نړۍ ترټولو خطرناک ترهګر تنظیم پخپله امریکا ده .

د ملاعمر له مړینې سره د روانې پیړۍ د تاریخ یوه لویه برخه تړلې ده ، ما د خپلې ډایرۍ پاڼې پلټلې ، پر څو داسې پاڼو ورمخ شوم چې د وینو په سیاهي لیکلې شوې وې. یعنی د ډایرۍ دا برخه د داسې خونړیو جګړو له حوادثو ډکه وه چې په دې پیړۍ کې یې بیلګې موندل ناشونی کار دی. او دا د شمال ټلوالې په لاسونو ترسره شوي خونړۍ کارنامې وې .

د عفیفو میرمنو او کمرعمره زلمیانو له ابرو ریزي نیولې ، تر غیر انساني وژنو پورې ، له هیڅ ډول وحشت څخه مخ نه دی اوښتی . او دا د ناقانونه وسلوالو له لوري ترسره کیدل .

دا پر هغه بدمرغیو برسیره وې ، چې د کمونیستي رژیم له لوري خو او شا یو میلیون کړل شویو ماینونو هم د خلکو د ژوند ډېوې پرلپسې مړې کولې . او په میلیونونو افغانان د وطن پرېښودلو له لاسه کړېدل .

خو همدا د ملاعمر په مشرۍ طالبان وو چې د اختناق دغه حالت یې وړورو ختم کړ ، مګر امریکا د خپلې حملې د جواز لپاره همدغو طالبانو ته سخت دریځي ویل. په دې وجه چې خپلو افغان میرمنو ته یې د بش له خوښې سره سمه آزادي ورکولو ته تیار نه وو .

طالبانو او ړدې ږیرې درلودې ، خو چونکه یهودیان نه وو ، د بش ځکه نه خوښیدل ، ښاغلی بوش ته یوازې یهودي لوی ږیرې د درنښت قابل دي او ورته سلام کوي .

د ملاعمر طالبان د امریکا له نظره ظالمان وو ، ځکه خو یې پریکړه کړې وه چې د تل لپاره یې باید نیست او نابود کړي .

له همدې ځایه وه چې د بوش د ترهګرۍ بیلګې نړۍ په خپلو سترګو ولیدلې ، په افغانستان کې یې ویالې د اوبو پرځای په معصومو وینو ډکې وبهولې .

هغه افغان میرمنې چې د تل لپاره د غیرمحرم له نظره خوندي وې ؛ ولې بش د هغوی تلاشي اخیسته. د آزادۍ په نوم یې له هغوی نه د هغوی ماشومان تري بیل کړل او کورونه یې په بمونو ورته وران کړل. او میندې یې د تل لپاره د مرګې په خوب ویدې کړلې . او د امریکا د دې ترهګرۍ په وړاندې د « أف » ویلو جرأت چا نشو کولای ، چې بیا به د تروریستانو په لیست کې ورګډیده .

د یولسم ستمبر پیښه په نیویارک ښار کې رامنځ ته شوه ، خو سزاء یې افغانستان ، عراق بلکې ټولې اسلامي نړۍ ته ورکول شوه. او همدا د مشر بوش ارمان و چې پوره شو . ځکه اوس په امریکا کې دا نه ختمیدونکي جګړې ته بوش پالیسي نوم ورکول کیږي. اوس چې نړۍ په کوم اور کې سوځله کیږي ؛ د دې اصلي ماسټرمایند یا پلان ګذار ، بوش او د هغه حلقه ده .

نن چې خبر خپریږي د طالبانو مشر ملاعمر وفات شوی ، دا خبر نه دی ، بلکې خبر دا دی چې له افغانستانه د جارج بوش د پیل شوي ترهګریزي جګړې عمر ډېر دراز دی او مرګ نلري .

پای

# دیوېشتمې پېړۍ امیرالمؤمنین وفات شو

استاد محمد زمان مزمل

ملا محمد عمر مجاهد چې افسانو ته په نړدې ژوند او جهاد يې يوويشتمه پېړۍ پيل کړه، د هغه مرګ تېره اونۍ د هغه نړدې دوستانو تسليم کړه

هغه د نړۍ په تاريخ کې د تر ټولو لوی نړيوال ايتلاف سره د جنګ مشر و، بلکې هغه د يو قطبه نړۍ د مخکښې امريکا سره د مقابلې چلنج او جګړې ته په هغه سادګۍ او ايمانداری ننوت چې نن يې امريکا د پيل شوې جګړې پاتې او پيچلی پړاو په مري کې د آسيا د ځواکمن هېواد چين په ثالثۍ حل يا هم بلې توطيې ته سپاري.

امير المومنين چې د کړو او منحرفو مجاهدينو ټوپک شاهي يې په کابل کې ماته او نسکوره کړه او د يوه عرب مسافر پر سر يې د يوه مناسب حل د نه ميندلو او ناکامۍ له کبله خپل حکومت قربان کړ او افغانستان يې د نصاراو او کمزورو مسلمانانو هغې لويې ايتلافي جګړې ته ټېله کړ چې بيا هم معلومه نه ده چې د يوويشتمې پېړۍ د دغه افسانه اي امير المومنين ملګري به د دې درندې جګړې پاتې پړاو سرفراز او يا د تېرو مجاهدينو په شان په خپل منځ کې تکرار جګړو ته دروي؟

که څه هم سيکولران، کمونستان او غرب ته پناه وړونکي افغانان به د مرحوم امير په هکله هر څه ووايي او وليکي؛ خو هغه د افغانستان د تاريخ په حساس پړاو کې د امريکا د يو قطبه نظام د اشغال سره د ټکر او جنګ حماسه د تاريخ وروستی باب کړ.

موږ چې يوه ورځ هم د هغه په حکومت کې کار نه دی کړی، موږ چې د دې لويې جګړې په اوږدو کې هغه يوازې او بې ملګری پرېښود، موږ چې د طالب اشتباوې او خپلې مشورې هغه ته په تکرار ليږلې وې نن يې په مړينه تر هر چا زيات خپه يو؛ ځکه هغه زموږ د دغه دنيا بدلوونکي تاريخ يوه برخه و.

معلومه نه ده چې هغه په طبيعي مرګ مړ دی او که په توطيه مړ شوی؛ خو بيا هم که بهرني لاسونه پکې وي نو د امين د مرګ په هکله د خالص بابا هغه خبره رايادره شوه چې ويلي يې و، موږ به له شورويانو نه غچ اخلو!!

په همدې تريخ مناسبت د ملا صاحب کورنۍ او ملګرو ته د تسليت مراتب وړاندې کوم. لوی خدای دې روان تريخ پړاو په داسې پايلو ښاد او ښادمن کړي، چې د ملا صاحب، ملت او د ټولو مسلمانانو ارمان پکې پوره شي او په افغانستان کې يوه دائمي سوله تامين کړي. آمين

# داسلامي امارت دنوي امير دلومړۍ غږيزې وينا ارزښتمن پيغامونه

ليکوال : فکرِي مبارز

داسلامي امارت دنوي امير محترم ملااختر محمد منصور لومړنۍ غږيزه وينا دوه ورځې دمخه د رسنيو له لارې خپره شوه .

په دغه وينا کې ملا اختر محمد منصور حفظه الله په ډېره سړه سينه خبرې کوي ، او خبرې يې ټولې د زړه له تله او له اخلاص څخه ډکې ښکاري .

وينا د کاغذ له مخې نده او کوم تکلف يې پکې ندی کړی او د تجربې له مخې دغه ډول ويناوې زياتره وخت له زړه څخه وي .

منصور صاحب په دغه وينا کې څو مهم پيغامونه ورکړي دي :

۱.سره لدې چې دی د رهبرې شورى غړی ؤ خو د نوي امير د ټاکلو په بحثونو کې دی شامل نه ؤ ، ابتدايي خبرې يې شورى ته کړې دي د عاليقدر اميرالمؤمنين رحمه الله د وفات خبر يې ورکړی او نور يې شورى پرېښې ده تر څو په خپله خوښه له کوم فشار او د چا له لحاظ څخه پرته فيصلې وکړي .

۲. شورى ته يې ډاډ ورکړی چې دوی هره فيصله وکړه هغه به مني .

۳. د صف په يووالي او وحدت يې ډېر زيات ټينګار کړی او دا يې وعده ورکړې چې د خپه ملګرو د خوشالولو لپاره به پوره کوشش کوي .

۴. په وينا کې يې داسې ښودلې چې دی د اسلامي امارت د صف د ماتيدا په خطر تر هر چا ښه پوهيږي او د هر چا په نسبت يې پايلو ته ښه متوجه دی .

۵. منصور صاحب دا جوته کړې چې که تاسې کومه د بدګومانۍ خبر اورئ بايد تحقيق پکې وکړئ او بايد فوراً يې ونه منئ .

يقيناً دا ډېره مهمه خبره وه او په دې خبره يې د خپل ځان په اړه ټولې هغه اوازې او تورونه چې په دې وروستيو وختونو کې د کفري رسنيو له لوري نشر کيدل رد کړې .

۶. د سولې او مذاکراتو د ډنډورو رد .

منصور صاحب په خپلو خبرو کې د سولې او مذاکراتو وروستی ډنډورې د دښمنانو تبليغات وګڼل او دا يې جوته کړه چې مسلمانان او مجاهدين بايد دغه ډول اوازو ته غوږ ونه نيسي .

۷. مجاهدينو ته په اخلاص ، تقوى او توکل ټينګار .

۸. کار اهل کار ته سپارل .

۹. د مجاهدينو په لباس کې د هغو غلو ، اختطافګرو او قاتلانو په ضد د مبارزې ټينګار چې جهاد يې بدنام کړی .

۱۰. مجاهدينو ته له خپل ولس سره د ښه سلوک توصيه او د ولس د همکارۍ او په اهميت باندې يې ټينګار .

۱۱. ټول امور د اسلامي شريعت په چوکاټ کې سرته رسول ، او له دښمنانو سره له داسې چلند څخه ډډه کول چې اسلام يې منع فرمايلې وي او له اسلامي حدودو څخه تجاوز او تيرى پکې وي .

د محترم ملااختر محمد منصور د وينا ياد شوي ټکي ډېر ارزښتمن دي ، او که په عمل کې پلي شي نو د طالبانو تر منځ به يووالى لا پياوړی کړي .

د ټولو هغو ناخوالو مخه به ونيسي چې هم د اختلافاتو د راپيدا کيدو سبب ګرځي ، هم د ولس او طالبانو تر منځ فاصله پيدا کوي او هم د روان سپيڅلي جهاد د بدنامۍ سبب ګرځي

# ریښتینی عمر!

عبدالوکیل صداقت

پر تاسو دې شاباس وي مرحوم قایده، چې تاسو د عمر له نوم سره پوره انصاف وکړ، تاسو د سیدنا عمر بن الخطاب رض عدالت ته ورته عدالت وکړ، تاسو د سیدنا عمر رضی الله په شان د بیت المال خیال وساته او په خپلو اولادونو مو مصرف نکړ؛ خو په جهاد او فلاحي کارونو کې مو بخل هم نه کاوه.

تاسو د سیدنا عمر په څېر د اسلام دا پریوتی بیرغ دوباره هسک کړ او د نړۍ مظلومو مسلمانانو ته مو د ازاد ژوند تېرولو درس وښود.

تاسو د سیدنا عمر په څېر د کفر او الحاد په مخ کې لکه فولادي دېوال ودریدئ او سر مو ورته ټیټ نه کړ، تاسو عمري اخلاق او عمري غیرت پیژندلی و، نو ځکه خو د وخت د لوی متکبر بوش وعده مو شاته وغورځوله او یو الله ته مو سر ښکته کړ!

اوس ځکه خلک تا یادوي او ویاړ دربانديې کوي، ستا په مرګ یې زړونه له ژونده تور دي، ستا په فراق یې اوښکې ...........اه.........اوښکې نه ودرېږي.

نه پوهېږم غم دې ولې ورځ تر بلې لکه د غره په شان په اوږو رابارېږي.

د یوه افغان لپاره د چا په مړینه اوښکې تویول عجیبه خبره ده، ځکه دلته دا سې ورځ نشته چې بمبار نه وي، مرګونه نه وي، د تنکیو ماشومانو او بې ګناه سرتورو مظلومانه شهادتونه او نورې ناخوالې نه وي؛ خو ستا مرګ ولې دومره ژور خفګان لري؟ ستا له اسلام سره بې دریغه مینې او په اسلام بې مثاله غیرت دی، چې ستا غم حد نه لري او نه ورنه مسلمان خلاصیدی شي!

ستا په مدحه کې دنیوي امتیاز نشته او ستا نوم اخېستل او تائید هماغسې جرم دی، لکه څنګه چې ستا په ژوند وو. د کفر ګوډاګیانو دې د فاتحو په غونډو هم بندیز لګولی دی.

خو ستا مینه وال بیا د دې پروا نه کوي. ستا د کلک ایمان او فولادي عزم په خاطر ګوتې سترې شوي، خو ستا حق لا نه دی اداء شوی. ستا ولس د ملي امنیت او زندان له ویرې پرته په ټول هېواد کې ختمونه کوي او دعاوې درته کوي، ستا ټولو ملګرو ستا په لاره د تللو عزم تازه کړ او د شریعت د نفاذ هوډ یې کړی، ته مه خفه کېږه!!!

ستا قوي اراده او شرعي موقف هماغسې تاند دی او د دې له پاره په زرګونو ځوانان قرباني ورکولو ته تیار ناست دي. تا به ویل چې امریکا دې خپل کار کوي او موږ به خپل. اوس هم هماغه خبره ده او اوس به هم هغوی خپل کار کوي او موږ خپل! تا چې به ویل توکل محض پکار دی!

ستا خبره د کانې کربښه ده او چې توکل محض نه وي، دديې نړيوال کفر پر وړاندې ودريدل امکان نه درلود. تاسو وښوده چې اسباب، وسلې او افراد د توکل او کلک ايمان پر وړاندې بې وسه دي!

تا ويلي وو، چې په موږ د انګرېزانو، ظاهرشاه او امريکايانو دملتيا تورونه ولګيدل، خو وخت ټول غلط ثابت کړل او دپاکستان د غلامۍ تور به هم يوه ورځ درواغ ثابت شي.

هو تاسو رښتيا ويلي و. نن ثابته شوه چې تاپه ۱۴کالو کې هر نوع تکليف وګاله؛ خو د پاکستان خاورې ته داخل نه شوئ او ستا د لارې ملګرو د دې هېواد په زندانونو کې ژوند دلاسه ورکړ. تاچې به ويل دښمني او دوستي مې يوازې دالله لپاره ده او بس! خپله خبره باندې د مرګ تر ورځې ولاړ وئ. اسامه او ملګرو سره مو دوستي په لوړه بيه وپالله او د کفرغلامانو سره مو دښمني همدارنګه وپالله! ماته په دې اړه يوه کيسه رايادە شوه.

کله چې امريکا يرغل وکړ او د قيامت صغرى په شکل هر سړي د ځان ساتلو په لټه کې و او دمقاومت اولې ورځې وې او دافرادو اشد ضرورت وو.

نو اکبراغا چې پخوانی مشهور قمندان و او دامارت په وخت کې د مرحوم ملاصيب د ځينو خودسريو په وجه ممنوع الوظيفه ګرځولی و. هغوی هم د جيش المسلمين په نوم عمليات شروع کړه او رسنيو کې مشهور شو.

نو يوځه وخت وروسته مې اغا صيب وليد او راته يې ويل چې ((ملا صاب هم عجيبه سړی دی. ماورته خبر ورولېږه، راځه چې نور په شريکه مقاومت پيل کړو؛ خو ده راته په ځواب کې غرېز پيغام راولېږه، چې زما هماغه پخوانی موقف دی او له دې سختو شيبو کې به مې هم دوست۔دوست او دښمن۔دښمن وي))مانا د اصولو په سر اختلاف او دوستي کې قاطع و. نن ګورو چې ستا مخالفت بې ځه نه و. هغه جناب اسارت او شکنجې ونه زغملې او اوس د اشغال له ادرسه سوله بدناموي؛ خوتاسو دا درونډ بار تر اخره وزغامه.

## زړور قايده!

ستا له وفات نه وروسته هم ستا ځينې متزلزل ملګري، چی ته يې په ژوند وار وار زورولی وې او اطاعت يې نه کاوه ،يو وار بيا راټول شوي او دا ورته يوه زرينه موکه ښکاري.

هغوی چې د طالب له نومه بيزاره ول او دا ۱۴کاله يې يوازې تجارت ته ملا تړلې وه، نن له غربي رسنيو سره د قيادي شورا په نوم په ډاډه زړه مرکې کوي او ستا د وراثت دعوه کوي. دوی ګرېوان ته سرنه ټيټوي، چې ولې مو په ژوند ليار ترې جدا کوله؟ولې مو د ټولې دنيا کفري لښکر ته يوازې پرېښود او ولې مو په سخته ورځ دده اطاعت نه کاوه، چې نن ستا د وراثت لپاره لګه د مګرمچ اوښکې تويوي.

قدرمن رهبره! ستا عظمت، کارنامې او وياړونه دومره زيات دي، چې قلم يې له ليکلو عاجز دی، خو بيا هم بايد وليکل شي، چې ستاسو په شان د دنيوي ژوند نه بې نيازه شاهان له پېړيو وروسته يو پيدا کېږي. الله مو هغه دنيا ښايسته لره او الله دی قبر د جنت باغچه وګرځوه.

# امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد



# مجدد قرن

احمد فارسی

امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله رحمة واسعة ، امام عادل ، امیر با حکمت ، قائد شجاع ، رهبر متقی ، مجاهد مرابط وعالم با عمل و مجدد قرن خویش بود ,

وقتی نام این هستی بر زبان عام و خاص جریان پیدا کرد که افغانستان در آتش جنگ های خانمانسوز داخلی ، اختلافات تنظیمی ، فساد اخلاقی ، و خدا ناترسی تمام قرار داشت , هیچ افغان از پیامدهای این جنگ ها مصئون نبود , مردها در بیرون و خانم ها در داخل خانه همیشه در معرض تعرض های گوناگون گروههای مختلف جنگی قرار داشتند ,

گروههای مسلح تمامی سرحدات اسلام و انسانیت را عبور کرده بودند ، خون انسان در مقابل یک قرص نان ریختانده میشد ، خانه های مردم در حالی بر آنان ویران می شدکه در نیمهٔ شب آنان در بستر خواب در داخل این خانه ها خوابیده می بودند ، پسران جوان شان به پوسته ها کشانیده می شدند و هر نوع وحشت و درندگی بر آنان روا دانسته می شد ، دختران جوان بخاطر دفاع از عفت و عزت خویش جان های شرین خودرا از دست دادند و بسیاری ها نتوانستند حتی این چنین دفاع کنند و در چنگال وحشیان مسلح قرار گرفته و گرانبها ترین و پر ارزش ترین داشته خودرا از دست دادند ,

این وقتی بود که جهان تماشاگر بود و افغان ها امید به زندگی را از دست داده بودند و هیچ مرجعی برای نجات بجز رحمت الهی وجود نداشت , همان بود که الله سبحانه و تعالی مجدد قرن را در لباس امیر المومنین جهت یاری مردم مظلوم فرستاد , این مجاهد شجاع و دلیر با دست خالی مقابله علیه این همه بدبختی ها را آغاز کرد و دیری نگذشت که نصرت های پیهم الهی نصیب حالش گردید و مردم به شکل افواج به این مبارزه پیوستند تا بالاخره شکل حرکت را بخود گرفت ,

در چنین حالات ناگوار و تقالید افغانی و در پهلوی اینهمه حاکمیت افراد مسلح و زورگوی بر مناطق مختلف کشور ، تقسیم ولایات و ولسوالی های کشور میان قوماندانان و تنظیم ها بعید به نظر می رسید که ملایی از مسجد خارج گردد و بتواند با اینهمه مشکلات دست و پنجه نرم کند و اقوام و طوائف مختلف را دورهم بر یک کلمه و زیر یک پرچم جمع کند , اگر لطف و مرحمت پروردگار ، حکمت و موهبهٔ رهبری ، ولایت و دوستی الهی ، و نبوغ تجدد در این شخص وجود نمی داشت هرگز انسان تصور این پیروزی ها و کامیابی ها را نمی کرد ,

درین شکی نیست که تغییر حالات مذکور و ایجاد یک صف واحد و مستحکم ، برپایی امارت اسلامی با مشکلات و دشواری های مواجه از داخل و خارج ، سپس مقابله با تمام دنیای صلیب وبردگان منتسب به اسلام با استفاده از پیشرفته ترین و مدرن ترین اسلحه وتجهیزات برای شخص عادی که از ولایت الهی و نبوغ تجدد خالی می بود ممکن نبود ,

مسلم است که این مبارزه و مقابله در چنین حالات از توان افراد جز مجددها آنانیکه نصرت الهی در هر قدم با ایشان است خارج است , علاوه بر این اگر ولایت و دوستی خداوند متعال شامل حال این رهبر و امیر نمی بود ممکن نبود که شخص عادی همچوکوه شامخ در مقابل این همه تهدیدات قرارگیرد و در این حالات دشوار و ناگوار چنان متصدی به احکام شرع باقی بماند که نه تنها دوست بلکه دشمن نیز انگشت حیرت به دندان باقی بماند ,

دنیا ، حکومت وقدرت با لذت و متاع آن نتوانستند اندکی از ایستادگی ، استحکام ، پایداری ، ثابت قدمی ، وفا به عهد و وعده با خالق و مخلوق این پیکر آهنین بکاهند , برای شخص عادی ممکن نبود که بخاطر حکم شرع که به گمان بعضی از ساده لوحان فرعی و ناچیز بشمار می رفت سر اطاعت به طواغیت جهان خم نکند و یا در مقابل پیشنهادات آنان تسلیم نگردد , تنها ولی خداوند متعال می تواند بخاطر حکم شرع از پیشنهاد کفار مبنی بر به رسمیت شناختن حکومت وی توسط همه جهان ، رفع قیودات و محاصره های اقتصادی وکمک های بی مقابل چشم پوشی کند و اینهمه را در مقابل احکام شرع ناچیز بداند ,

علاوه بر این ، بجز برای ولی خداوند متعال برای فرد عادی ممکن نبود که در این حالات دشوار نه تنها با جهان صلیب بلکه با منافقان داخلی با حکمت و تدبر مبارزه کند و صف مجاهدین را چنان واحد ، استوار و مستحکم نگهدارد که جهان اعم از دوست و دشمن از چنین نظم و اطاعت در تعجب بیافتد ,

و یکی از نشانه های ولایت امیر المومنین رحمه الله این بود که به وعده الهی که در حدیث قدسی می آید که هر که با ولی (دوست) خداوند متعال دشمنی کند او تعالی علیه وی اعلان جنگ می کند ، آنعده از دشمنان وی که خودرا مسلمان و مجاهد گمان می کردند مگر در دشمنی با امارت اسلامی در صف صلیب و دشمن قرارگرفته و علیه امارت اسلامی و شخص امیر المومنین پروپاگنده و تبلیغات کردند این وعده الهی شامل حال شان گردید و چنان ذلیل و رسوا شدند که همهٔ جهان شاهد آن گردید ,

بالاخره این مجدد قرن و مجاهد مرابط آنچنان عزیز و مردانه وار از این جهان رحلت کرد که حتی دشمن نیز نتوانست از این عزت و سربلندی که الله متعال به وی ارزانی فرموده بود انکار کند .

امیر المومنین رحمه الله رفت مگر نامش ان شاء الله تا ابد شامل کتاب مردانگی ، شجاعت ، عدالت ، استحکام ، پایداری و ثبات ثبت شد و ان شاء الله راهش توسط دوستان و همراهانش ادامه خواهد یافت و دشمن یکبار دیگر به یأس و نا امیدی مواجه خواهد شد ,

الهی روح امیر المومنین را شاد و راضی نگهدار و مسیرش را همیشه و جاودان داشته باش , دوستانش را عزیز و دشمنانش را ذلیل داشته باش ، و ما ذلک علیک بعزیز .

### دملامحمد عمر مجاهد دستر شخصیت په اړه،

# زموږ اجتماعي مسئولیت

## راځئ چې دانصاف قضاوت وکړو

شهیدزوی

نړۍ چې له کومه نه په انسانانو اباده شویده پکې دعاموانسانانو تر څنګ ډېر ستر شخصیتونه تېر شویدي ؛ انساني تاریخ دوئ اودوئ ټولې کارنامې او مثبت اړخونه په زرینو تورولیکلي دي خو ددوئ لړیاډېر منفي اړخونه یې هم ندي هېر کړي .

همدا راز په نړۍ کې چې کوم مشهور خونخوار اوسفاح خلک تېر شویدي هغوئ اودهغوئ ناکاره کړه وړه هم تاریخ ندي هېر کړي خو ور سره یوځای یې په هغوئ کې شته دهغوئ ځني غوره صفات هم له پامه ندي غورځولي چې همدادانصاف غوښتنه ده.

څه دامنم چې دنړۍ ټول تاریخ مستند ندی اونه په تمامه معنی داعتماد وړ دی تاریخ دافرادو، ولسونواوملتونو دښواوبدوپه یادولو کې دډېر ومبالغونه کاراخلي اوپه ډېر وموار دو کې تاریخ لیکونکي دمذهب اوملت داختلاف پر بنسټ د تعصب ښکار کېږي نوخپل واړه خلک او وړې کارنامې ډېرې لویوي اودنورو ډېر لوی خلک اولوېې شاهکارئ هېر روي.

نو تاریخ ته هغومره مرتبه اومقام ندي ور کول پکار ځومره مقام اومرتبه چې ور کړل شویده خو داسې هم نده چې په تاریخ لیکلو کې یواځې دمبالغونه کاراخستل کېږي ؛ دلته ډېر رښتیا ګویه خلک شته چې دهر ډول تعصب نه لری دي اویواځې حقایق اورښتینې خبرې لیکي ؛ موږ دهمدغسې خلکونه امید لرو چې دامیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد په اړه به دانصاف قضاوت وکړي ، رښتیا به ولیکي ، حقایق به هیڅ پټ نکړي اوخپل مسؤلیت به اداکړي .

دانه څه اونه بل څوک ویلی شي چې ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله دې دټولوافغانانو ترمنځ داسې متفق علیه شخصیت شي چې هر څه دې یې هر څوک مثبت وګڼي اودهغه دفکر ،پالیسۍ ، حکومت دارۍ ، دنني اوبهرني سیاست ، کړنلارې اوایډیالوژۍ سره دې هیڅوک هیڅ ډول مخالفت ونه لري .

هغه انسان و ؛ دهغه نه دسهوو اوخطاګانو وقوع څه ناشونې یابعیده نه وه ؛ هغه چې په ډېر وسختوشرایطو کې دهېواد دمشر حاکم په صفت دملت خدمت کاوه او کابو دوه لسیزې یې دیوداسې غور ځنګ مشري وکړه چې له څو هېوادوپر ته یې تل ټوله نړۍ مخالفه وه او ۱۴ کاله یې دنړۍ په تاریخ کې د تر ټولوستر غربي اتحادسره په جنګ کې تېر شول نو کېدای شي چې څه سهوې اوخطاوې به ترې شوې وي ؛ که

کومه داسې سهوه اوخطايې په ګوته شي چې هغه واقعاً هم سهوه اوخطاوي نودهغې نوسره په خپل وخت کې مخالفت ښکاره کول معقوله خبره ده خودهغه مثبتولویو کارنامو ته هم په منفي نظر کتل ؛ ستر ګې پرې پټول اوپه ستر و اتلولیوبې اعتراف نه کول هم لویه بې انصافي ده .

دانصاف غوښتنه داده چې ټولومثبتو کارونو ته یې په مثبت نظر و کتل شي اوپه هرې اتلوالي يې ښه په ورین تندي اعتراف وشي .

هو ! لکه دهغه دنوم سره چې له ملا اومجاهد پر ته بل څه نشته همداحقیقت هم دی ، دار ښتیاوه چې هغه نه شیخ الاسلام و ، نه علامه و ، نه دکتور و ، نه چر ته دلوی پوهنتون یاجامعې استاذ و ، نه شیخ الحدیث اوشیخ القرآن و ، نه لندن او واشنګټن ته تللی و ، نه یې آکسفورډ او کیمبرج لیدلی و ، نه مشهورمقرر و ، نه خبرلوڅ و اونه هم

نه یې پر اسلامي نړۍ دمسلطوڅینو لاسپوڅو مکارو ، چالاکو او حیله بازو حاکمانو غوندې په ډېر وژبو خبرې کولې ، هغه یوائې ملا اومجاهدو ؛ په افغانستان کې چې ددیني علومواوفنونو دزدکړو کومه ساده اوسپېڅلې طریقه رائج وه په هماغه ساده طریقې يې ددیني علومواوفنونوزدکړې کړې وې او پاتې ټول عمر يې په جهاد کې تېر شوی و چې همداډده امتیازي شان اومعنوي ښایست و .

ولس فریبکاران اوچالاک ډاکټران ، قدرت طلبي او جاه طلبي انجنران

پرواک مین فریبکاران استاذان لیدلي وو اوددوئ ټول ظلمونه اووحشتونه یې مخې ته وو نو ځکه ور ته دده رحمه الله تعالی دژوند او کلام سادګي تر ټولو زیاته داطمینان وړ وه ، او دده دینداري ، تقوی ، جهادي اهدافو ته وفاداري ؛ دشریعت په لار ښوونو استقامت او نا متزلزل قیادت دده دولسي محبوبیت تر ټولو اساسي اواصل لامل و ، او دده همدې امتیازي شان هغه داسلامي نړۍ لوی قائد وګرځولو ؛ دنړۍ ټول مسلمانان او جهادي حرکتونه ور ته دامیر المؤمنین خطاب کوي اوپه کارنامو يې وياړي ، له وفات وروسته ،دهغه روح ته په لیولیو دعاګانې کوي ،دده رحمه الله تعالی په باب خپل نیک تاثرات نشروي او دده دهمدې یادو عالي صفاتوله امله لاهم دطالبانو لښکر دجهادي بهیر مخکښان بولي؛ خپله همبستګي یې ورسره ښکاره کړه اوداسلامي امارت دنوي امیر سره یې په ډېر لوړ احساس اولویې جزبې بیعتونه وکړل .

نو له شکه وتې خبره ده چې هغه په ټولې نړۍ کې رښتونې جهادي روحیه ؛داسلامي بهرني اودنني حقیقي شکل او اصل اسلامي حکمراني بیا راوژوندۍ کړه نوهغه ددې حقدار دی چې دعملي جهاد عملي اسلامي سیاست اوحقیقي اسلامي حاکمیت ددې زمانې مجدد وګڼل شي .

هغه په جهادي تنظیمونو کې ویشل شوي ټول مجاهدین په یوصف کې ودرول اونه بدلېدونکي اصول يې ور ته وضع کړل ؛ هېواد کې دروسانوپر ضد تر سره شوي څوارلس کلن جهاد نه وروسته دقومیت ،سمت او ژبې په نامه بل شوي اورونه یې مړه کړل او ټول افغانان، دهر قوم سره يې چې تړاو و اوپه هرې يې چې خبرې کولې ؛ دشمال وو، که دجنوب ،دختیځ وو ، که دلویدیځ، داسلامي امارت دیوبیرغ لاندې سره راټول او دپردیو په اشارو دبغض ، حسد او دښمنیووبل اورونه یې دتل لپاره مړه کړل چې دهمدې واحد صف دوحدت په بر کت مسلمانان سرلوړي شول ؛ جهاد کامیاب شواودنړۍ دستر و زبر ځواکونو نه جوړ لوی صلیبي اتحاد دشکست تر سرحده ورسېد اوپه واحد صف کې ولاړ همدامجاهدین نن دټولې نړۍ دمسلمانانو نړیوال قیادت کوي .

هغه رښتونی مسلمان متوکل حاکم اودمحمود غزنوي حقیقي وارث ووچې په بامیانو کې يې دبودا دمجسمې په نړولو دشرک بتکدې اودبهرنیانو دفحاشۍ اډې په ډېر جرأت له منځه یوړې ؛ ددې دپاتې کېدو لپاره يې نه دچا پیسې قبولې کړې او نه دمسلمانانودا زړور مشر دکوم ښکیلاکي ملک له تهدیدنه وویرېد .

هغه رښتيا چې دمسلمانانو قدر دان حاکم و ؛ نړۍ ته يې وښودله چې يومسلمان څومره دقدر وړ دی ؟! هغه ديوه عرب مسلمان مجاهد شيخ اسامه بن لادن رحمه الله تعالی څخه بشپړه ننګه وکړه اوپـدې اړه يې دنړۍ يوډول فشار ته هم سر ټيټ نکړ ؛ امريکا يې فرعونيت ته يې غوڅ منفي ځواب ور کړ ؛ دخپلې واکمنۍ نه تېر شو خوداسلام داصولونه تېر نه شو .

هغه چې دغربي زبر ځواکونونه ،نه وېرېدلو ، پر مسلمانانو دننګې خبره چې راغله دشرقي نېږدې زبر ځواک روسې يې هم څه پروا ونه ساتله او کله چې چيچين دمجاهدينو په لاس فتحه شو نوپه يوازې ځان يې دچيچين اسلامي حکومت پـه رسميت وپيژندلو ؛ داهغه تاريخ جوړونکې کارنامه وه چې پدې سره يې دقفقاز دمسلمانانو تر څنګ دټولې سيمې مسلمانانو کې جهادي روحيات لوړ اودجهادي پاڅون او خپلواکۍ اخستلو ساه يې پکې پوه کړه .

امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی چې دکوم حرکت بنسټ کېښود او کابو تر دوه لسيزو يې ددې حرکت قيادت اومشري وکړه دې حرکت دډېرې سترې ناهيلۍ په حالت کې ولس اومسلمان ملت تـه هغه بې ساري لوی خدمت وکړ چې چابه يې تصور هم نه شو کولای .

تاسې وګورۍ ! دتجاوز ګرو روسانو په مقابل کې چې په شوي جهاد اوهجرت کې افغانانوسخت کړ اوونه وګالل ؛سترې قربانۍ يې ور کړې يو نيم مليون افغانان شهيدان شول او د افغانانو دمقدس جهاد او پکې د سترو قربانيو په نتيجه کې چې روسانو ماتې وخوړه نو دافغانانو او د نړۍ د ټولو مسلمانانو د هيلو سره سم دلته د عدل او امن نه ډک سوچه اسلامي نظام نافذېدونکی وخوله بده مرغه چې زموږ سر کښانو دې لويو قربانيو ته ونه کتل ؛د جهاد اهداف يې په نظر کې ونه ساتل او هغه څه يې وکړل کوم چې دنړيوال کفر ارمان و ؛ د قدرت په سر د څو حريصو ځېرو د خپلمنځي اختلافاتو اوپه نتيجه کې يې په پلازمېنې اودهېواد په ګوټ ګوټ کې در امنځته شويو جنګونو له امله نه يوازې دا چې دې نظام تحقق و نه موندلو بلکې دمسلمانانو قتل عام وشو ؛ کورونه يې لوټې لوټې شول؛ دکابليانو پـه شمول پـه سونو زره هېوادوال بيا هجرت کولو ته اړ شول اوپر دې غريب ولس د شر او فساد نه ډک يو داسی حالت راغلو چې دولتي نظم بيخي لـه منځه ولاړ ؛ پرهېواد طوائف الملوکي مسلطه شوه ؛ هر زورور بـه د خپلی قبضې لاندې سيمې باچا و ؛ د هرو دوه ښارونو تـر منځ بـه دسر کونوپه سر د غلو او لوټمارانو په سونو پاټکونه وو ؛ افغان ولس د صحت او تعليم په شمول دژوند د ټولو اسانتياو نه بې برخې و او د هيڅاځان ، مال او عزت نه وخوندي .

داخوظاهري اومادي تاوانونه وو ؛ معنوي تـاوان خوبيا ډېر ستر و؛ پـه افغانستان کې پـه داسې خطرناکې خپلمنځي جګړې کې دجهادي ډلو داخته کېدو لـه املـه د جهاد عظمت د خلکوپـه ستر ګو کې راکم شو؛ دې ستر ، کامياب او تاريخي جهاد تـه کمونستانو او نېشنلستانو د فساد خطاب وکړ ؛ عام ذهنيت هم تر ډېره حده له دوئ متاثر شو ؛ اسلام ته ژمنه ټوله حلقه اوپه ځانګړې ډول مجاهدين پـه نړۍ کې د يوې ناکامې ډلې په حيث وپېژندل شوه .

په افغانستان کې دروسانو دماتې سره سم دخلکو يقين ته پرېوتې وه چې نړۍ کې ټولې تيورئ ، فلسفې او ګروهې ماتې شوې ؛ پر نړۍ دحاکميت وار د اسلام دی او ټوله انساني ټولنه به ژغوري .

خوله بده مرغه چې کله تنظيمونه خپلو کې سره ښکر په ښکر شول نو د اسلامي نظام په نوم داسې نظام رامنځته شو چې خلکو په هر نظام شکر وويست.

دا حالت به د هرې ورځې په تېرېدلو له بد نه بد تر کېدلو؛ افغانان داسې پر او ته رسېدلي ول چې په تاریخي لحاظ ترې د یوې سوبې تمه لرل خو ډېره لرې وه په خپل منځ کې ترې دسولې ټول امېدونه هم له منځه تللي وو نوځکه دښمن فکر وکړ چې دا خلک ګوندې پر اګنده شول او وحدت یې د تل لپاره له منځه ولاړ.

داهغه وخت وچې تر ټولو ستر ګواښ چې دافغانستان دتجزیې ګواښ و دښمنه نړۍ ور ته ستر ګې په لار شوه او ولې به نه وه چې په جنګ کې ښکېلو ډلو کې داسې لوېې ناولې ډېرې ځېرې وې چې دهېواد ویش ته یې ښه په سپین ستر ګی خوشالي ښکاره کوله اوپه زړونو کې یې دا ګوړی اوشکرې ماتولې چې په واړه مساحت کې خو د ده په ځېربې سواده شیان چې څو ک یې په سړو کې هم نه شمېري، وزیر کېدای شي.

هغه نړۍ چې افغانانو د روسانو د ستر شر نه ژغورلی وه پکې یوهېواد هم داسی نه و چې پدې حالت کې یې افغانانو ته لاس ور کړی وای او یایې ددې بد حالت نه د دوئ د راویستلو لپاره کوچنی اقدام یا فکر کړی وای.

داچې دستر ګټل شوي جهاد نتایج او ثمرات ضایع کېدل نوپه دې حالت دنړۍ مخلص مسلمانان سخت زورېدل ځکه چې نه یوازې افغانانو ته بلکې دنړۍ ټولو مسلمانانو ته د افغان جهاد د نتایجو ګټل او ساتل مهم وو ؛ کله چې د روسانو له ماتې وروسته ځینې رهبران خپلو کې سره ونښتل د نړۍ لوی لوی علماء، دعات او خیر خواهان د دوئ د روغې جوړې لپاره لاس په کار شول ؛ پدې لار کې هغوئ ډېر تکالیف وګالل خوپه جنګ کې اخته اړخونو جنګ ونه درولو اونه پکې دجهاد دثمراتو اودامت داجتماعي ستر وګټو دساتنې څه فکر پیدا شو.

له هر لورې ناهیلي وه او دې غریب ولس هیڅو ک داسی نه لیدلو چې دامېد ستر ګې یې ور اړولی وای اونه یې یو فیصد دا تمه لرله چې ګینې د دې ستر ناورین نه به یوه ورځ راووځي اویابه پدې هېواد کې امن ، ثبات ، دولتي نظم اونظام بیاوجود ومومي.

په هېواد کې دننه هم لوی هجر تونه رامنځته شوي وو اوچاچې دهېواد نه بېرون هر هېواد ته دتللو توان لرلو ترې تللي وو یاترې تلل اودهېواد غریب خلک دبې کارۍ اوغریبۍ تر څنګ دبدامنۍ اوفسادنه ډک دې حالت سخت زورول ؛ له هر لوري ناهیلي وه اود ناهیلۍ نه ډک په همدې ستر حالت کې د ستر فر است څښتن ؛ د هېواد او ملت لوی غمخور ، رښتیني مدبر ، د همت غر او د جر أت ، حریت او د قربانۍ سمبول ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د خپلو څو ملګرو سره یوځای ددې ستر شر او فساد پر ضد په یو کلي کې توره په لاس میدان ته راودانګل او چې دې کوچنۍ ډلې ته الله تعالی په لږې مودې کې په قندهار کې ستره کامیابي ور په برخه کړه نو د افغانستان ټول حق پالونکي علماء او د دیني مدر سو طالبان ور سره یو ځای شول ؛ د طالبانو تحریک ترې جوړ شو چې ټول مجاهد ملت یې تر شا ودرېدلو اوهر شوم پلان یې پوچ کړ ؛هره بده حیله یې په شا وتمبوله ؛هر بد نظر یې له بېخه وکاږه اوهره ناکاره اراده یې په نطفې کې خنثی کړه.

هو !همداملا محمدعمر مجاهدوچې دغوري ،غزنوي او ابدالي دجغرافیې داسې ساتنه یې وکړه چې تجزیه ماران یې تر تهران ، کولاب ، استنبول او ماسکو ورسول.

پر هېواد دژبني ، سمتي اوقومي تعصباتو راخپرې شوې ټولې تورې ورېځې دملي اودیني وحدت پاک نسیم له دوشنبې او تهرانه هم پسې ورواړولې ؛ د افغانستان د ویش هره دسیسه یې له منځه یوړه او قومي تړون یې دسپېڅلې عقیدې په داسې تار سره وتاړه چې هیڅکله شلېدونکی اوخلاصېدونکې ندی.

که دښمنانو دافغانانو ددې ملي وحدت نه پرون انکار کاوه آیا نن یې کولای شي؟ تاسې وګورئ چې په شمال کې مجاهدین د اسلامي امارت په اطاعت کې ددښمن پر ضدپه کوم احساس جنګېږي او په کومه رشته سره تړلي دي ؟

دقدرت اوډالرو وږوچې پرون بيا د تجزيې سندرې پيل کړې اوپدې دليل د اشغال د دوام خبرې کېدلې څنګه به يې تکراروي چې ملت په اتفاق دتجزيه کاروټولې دسيسې عملاً ورشنډې کړې او د هېواد په لر وبر کې دهرې ژبې ،هرې سيمې اوهرقوم سره تړاولرونکي مجاهدين سره په يوه مزي او واحد اطاعت تړلي د اسلامي امارت تر اطاعت لاندې ددښمن پرضد په پوره مېړانې جنګېږي اولويې لويې سيمې غونډې غونډې ولسوالۍ ددښمن دقبضې نه ازادوي اوستر بيسونه اوفوځې مر کزونه ترې نيسي .

افغانانويواځې هغه وخت خپل تاريخي ارزښت اومقام ساتلای چې کله يې دخپل ملي وحدت مظاهره کړيده او لاسونه يې سره ور کړي دي ؛ اتفاق واتحاد چې نه وي بيا خو تاريخ د پول پرانانو ،جنګ سالارانواو پاټک سالارانو کيسې ليکي .

دتنظيمي جګړو ، رقص مرده اودخپلوعفتونودساتلو په موخه دکابل ښار دمکرويانو ددريمو او څلورمو پوړونو نه لاندې ځمکې ته دخپلو ځانونو راغورځونکو عفيفوخويندو د ناموسونولوټېدلو هغه داستانونه خوندي کوي چې د کمزورې زړه ښځښتن يې لوستلای هم نه شي .

نوجاه طلبو ،دډالرو مينانوا ،دقدرت وږو او بې ارزښته خلکو چې په کوم وخت کې د دې مسلمان ملت د اسلامي ورورولۍ احساس دځپلو ؛ د تعصباتو خپرولو ، دملت دوېشلواود هېواد دتجزيه کولوله لارې زموږ تاريخ کې توربابونه ورزياتول ملا محمد عمر مجاهد په پوره جرأت اومتانت توره په لاس دهمدې بې وژدانوپه مقابل کې ميدان ته راووت ؛ افغاني تاريخ يې نه نړېدو ته پرېښود او نه يې خرابېدو ته نوداپر ځای خبره ده چې امير المؤمنين د جهاد اودافغاني تاريخ د عظمتونو وارث و .

له دې هيڅوک انکار نشي کولای چې د جهاداوافغاني تاريخ دعظمت وارث چې کله دخپلوملګروطالبانو اوملايانوسره يوځای توره پورته کړه او ميدان ته راووت نو ايله چمن ماليار وموند ؛ پر خزان وهلو څپرو دبهار تازګي خپره شوه ؛ هيلو بياغوټۍ ونيوې ؛ دارمانونوغوټۍ ګل شوې ؛ دجهاد نوم اومقام بيا احيا شو ؛ دبلالي اذان انګازو افقونه بيا رابيدار کړل ؛ دممبر اومحراب آواز بيا خپل اثربښکاره کړ ؛ دديني لاربښوونو پيروي عامه شوه ؛ داسلامي شعاير وقدر داني پيل شوه ؛د اسلام ، ملت ،خاورې اوناموس نه ددفاع په خاطر قربان شويو سرونو قدر پيداکړ ؛د اسلام دحاکميت په هدف له نړۍ کوچېدليو روحونو ارزښت وموند ؛ هغو سرونو قيمت وګاټه چې د شريعت د نفاذ په کوښښ له تنو جداشول .

په افغانستان کې اسلامي نظام راتلل چې دټول مسلمان ملت ارمان وحاکم يې کړ او نړۍ ته يې داوښودله چې موږ چې د کوم نظام راوستلو لپاره قرباني ور کړيده په نفاذيې قادريو اوپدې لار کې دچاخنډ کېدل نه منو .

هو ! د سترو قربانيوو په نتيجه کې دتېر جهاد ثمراتو تحقق وموندلو اودې بې چاره ملت ته داسې د امن او سو کالۍ نه ډک نظام ور په برخه شو چې په ټول عمر کې به افغانانو د خپل سر ،مال او عزت د خونديتوب داسې احساس نه وکړی لکه پدې نظام کې يې چې وکړ .

هماغه هېواد چې وړاندې يکې دهيچا پت نه و خوندي ؛ يکې به که يوې مېرمنې په ټول هېواد کې دتنها ګرځېدلو اراده وکړه بې له کوم کوچني خوف او وېرې به ګرځېدای شوه ؛ سره له دې چې په لويولاروبه په سونو کيلومتره لرې چرته دطالبانويو مر کز و خو له طورخم نه به دهرات پرلور دپيسو ډک موټر دمسلحو ساتونکو پر ته ډرېور په يواځې ځان روان کړی و اوپه خيال وخاطر کې به يې هم دا نه راتله چې ګينې څوک به يې پيسوته دضرر رسولو اراده وکړي ؛ د اسعارو د تبادلې په بازارونو کې به صرافانو په خپلو پنډونو پنډونو پيسو څادرونه راخپاره کړل اوپه کامل اطمينان او ورته د نقصان رسېدلو له وېرې پر ته به ترې خپلولمونځونو اونوروضرورتونوته تلل .

داسمه ده چې موږ له بل هر ولس نه زيات او ستر اتلان لرو او د هر يو اتلولي په خپل ذات کې ډېره ستره ده خو که د انصاف په نظر وکتل شي نو د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی دااتلولي به زموږ په تاريخ کې بې ساري وي .

په افغانستان کې چې دا نظام ټولې کفري نړۍ اوخصوصا امریکا ته دمنلو وړنه و نوددې نظام ، اسلام او مسلمانانو دله منځه وړلو په موخه د امریکا په مشرۍ کې لوی صلیبي اتحاد رامنځته شو ؛ دا دانساني تاریخ هغه تر ټولو ستر اتحاد و چې د نړۍ بل یو طاقت یې هم مقابلې ته د راوتلو جرأت نه شو کولای او ټول ور ته تسلیم وو ؛ ددې اتحاد مقابلې ته راوتل خو ډېره لرې خبره وه هغه څوک چې اوس بریتونه تاووي ددې اتحاد دنوم په اورېدوبه یې لینگي رپېدل خو ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله ددې ستر اتحاد په مقابل کې د استقامت د غر په څېر میدان کې ودرید او د شرمونکې ماتې سره ددې اتحاد د مخامخ کولو پورې یې ددې پیل شوي جهاد قیادت وکړ چې دا یقینا د نړۍ په سطحه بې ساري اتلولي ده .

ددې فتحې تر څنگ داهم ډېره مهمه ده چې په افغانستان کې چې د تېرو ۱۴ کلونو راهیسې د کوم جهادمشري ملامحمد عمر مجاهد کوله اودهمدې جهاد په بر کت مغروره امریکا اوټول متحدین یې دسختې شرمونکې ماتې سره مخامخ شول نوڅر گنده خبره ده چې مکار دښمن به په تېرو ۱۴ کلونو کې دهغه دبدنامولو لپاره له حده زیاتې هڅې کړې وي خو هیڅ داسې څه ورسره نشته چې وربانـدې یـې بـدنام کـړي ؛ دښـمن دهغـه پـه اړه نـړۍ تـه دوبلولپـاره یـواځې همـدومره لـرل چـې هغـه تروریسـت (مجاهـد) دی اودتروریستانو(مجاهدینو) مشري کوي نوباید ووژل شي یا ژوندي ونیول شي .

نو داسلام او مسلمانانو دې ازلي دښمنانو چې خپل دې ستر دښمن کې داسې هیڅ ونه موندل چې وربانـدې یې بدنام کړي داد افغانانولپاره د ډېر لوی افتخار خبره ده .

دنړۍ په تاریخ کې تر ټولو لوی اوپه مادي اوعسکري وسایلو تر ټولو سمبال اتحاد چې دوسایلو پـه لحاظ زموږد کمزورواودشمېر په لحاظ زموږ دلږو لښکروپه مقابل کې ماتې خوړي دازموږلپاره بې حده لوی افتخار دی ؛ که څوک له دې افتخارنه انکار کوي ،یایې دبې ارزښته کولوهڅې کوي اویا هم خپل افتخارپر دی کوي دابه دخپل تاریخ سره نه جبرانېدونکی داسې جفاوي چې ملت به یې هیڅکله هم ونه بښي .

ددې فاتح لښکر سرلښکر چې دومره لوی شخصیت دی چې سره لـه کوښښونوپکې نه اشغالگر دښمن اونه هم لاسپوڅي داخلي دښمن څه دپام وړعیب پیداکولای شي نو همدامو دافتخاراتو افتخار دی اوهمدامودزرین تاریخ یومستقل ستر باب دی .

محترموافغــان مؤمنــو لیکوالانــو ،څېړونکــو ،ادیبــانو اوعاموسـلمانانو! راځـئ چـې دسـمتي ، قـومي ، تنظیمـي ،ژبنیـزو اونوروتعصباتوهنداري لـه ستر گو لرې کړو ؛دملا محمد عمر مجاهدر حمه الله تعالی دشخصیت پـه اړه دانصاف نه کار واخلو اوخپل تاریخي مسئولیت اداکړو .

دملاصیب دکومې پرېکړې یاخبرې سره دنظراختلاف کېدای شي خودنظر داختلاف له امله دهغه لوېې اتلولۍ اوشاهکارئ له پامه غورځول به لویه اشتباه اوبې انصافي وي .

دنورو ولسونوډېر واړه خلک وي خوټول ور ته یولاس اویوه خوله شي نوتر ې نومیالي جوړ کړي اوپه ډېر ووړو کارنامو یې اتلان کړي ؛ همدا دخلکودیووالي کمال وي چې دخپلوشغلانونه هم زمریان جوړولای شي ؛ موږ ته چې خدای داسې اتل راکړی چې دټولې اسلامي نړۍ حقاني علماء ،پوهان ،جهادي قائدین ، عام مجاهدین اوټول مخلص مسلمانان یې خپل اتل بولي ؛دیانت ، عظمت ، شجاعت ، متانت ،بصیرت او کرامت ته یې سلام کوي او دعقیدت نه ډک خوراعالي الفاظ یې روح ته ډالۍ کوي نوهمدامو ددې وخت دی چې پـه کور دننه ټولې وړې خبرې شاته کړو اوڅرنگه یې چې اسلامي نړۍ غواړي همداسې یې له هېواده وباسو اونړیوال یې کړو .

هو ! هغه نړیوال دی او تاریخونه به یې نړیوال بولي ؛ د کوم مقاومت په نتیجه کې چې امریکا او متحدین یې مات او ټوله نړۍ یې له شرنه محفوظه شوه ، ددې مقاومت قیادت چې دملا محمدعمر مجاهد په غاړه و نو آیا هغه ددې حقدار ندی چې یاده ټوله نړۍ یې خپل اتل وبولي ؟

داخو هر دشعور څښتن او دامریکادار ادونه خبر تن مني چې امریکا د ټولې اسلامي نړۍ تر څنګ دسیمې ګڼ شمېر نااسلامي هېوادونه هم قبضه کول او له ستوني تېرول غوښتل خوداچې امریکا او متحدین یې په افغانستان کې دسخت مقاومت سره مخامخ شول اودامقاومت تر ۱۴ کلونو اوږد شو ؛ ددې مقاومت په نتیجه کې؛ چې امریکا او متحدی

یې د تاریخي ماتې سره مخامخ شول نو د افغانستان تر څنګ یې ټوله نړۍ له شرنه په امن کې پاتې شوه .

نو حقیقت دادی چې دټولې اسلامي نړۍ تر څنګ دسیمې نا اسلامي هېوادونه هم دملا محمدعمر مجاهد رحمه الله اودهغه دمجاهدینو ملګرو پوروړې ده .

څه امیدلرم چې پدې هېوادونو کې به ټول حق پالي اوانصاف خوښوونکي پدې حقیقت اعتراف وکړي ؛ که په ژوند نه وو دوفات نه پس به ددې پور داداکولو کوښښ وکړي اودانصاف غوښتنه به پوره کړي .

اوځه پوره باورلرم چې تاریخ به دا یوه اتلولي هم هېره نکړي؛ پدې اړه به سم قضاوت وکړي ؛ تاریخ به هغه رحمه الله د صلاح الدین ایوبي په څېر داسلام دستر واو نامتو اتلانو څخه وګڼي .

ستر احمدشاه بابا اومیرویس نیکه افغانان وو خو ټوله نړۍ مني چې تاریخي حیثیت یې نړیوال و ، دنړۍ په تاریخ کې قدرمن امیر المؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی هم داستقامت ، حق پالنې ، خداپرستی ، زړوتیا ، دیانت داری ، په وعدو دوفا ، په خپلې حقې خبرې دټیګ ودرېدلو ، امانت داری ، شریعت پالنې په خپل ولس دزړه سوي او ترحم ، دټول مسلمان ملت سره دخواخوږۍ ، بشر دوستۍ ، ددښمن په مقابل کې دمتین عزم لرلو اوبواځې دالله تعالی پر ذات دتوکل داسې زرین بابونه جوړ او راتلونکي تاریخ کې یې ځانته دومره لوړ ځای پرېښود ، چې دنړۍ په سطحه دستر ومسلمانو اتلانوغوندې به یې مسلمان ولسونه تر قیامته په تاریخ جوړونکو کارنامو وياړي .

پدې اړه پوره اطمینان دی چې تاریخ به هیڅ هم هېرنکړي خو دا اندېښنه شته چې په تاریخ کې ثبت شوي زیاتره شیان شایدر اتلونکي نسلونه مبالغه یاخیالي کیسې وګڼي ځکه چې دادومره ډیرې کارنامې اوداد دومره ډیرې شاهکارۍ اواتلولۍ عادةً په یوانسان کې خلکو ته ناشوني ښکاري ، خوهغه چې عام انسان نه و؛ څښتن تعالی لوی عظمت او کرامت ور کړی و واقعیت به همدا وي چې دادومره ښیګڼې ، اتلولۍ اوشاهکارۍ دهمده په وجود کې نغښتې او دهمده په لاس تر سره کړې وې .

نو ځکه وایو چې وفات یې داسې ستره حادثه ده چې باید ټول عالم پرې وژاړي او خصوصاًمونږ خو له ستر ګو داوښکو پر ځای وینې توی کړو . خو داچې ددې طبعي ستر غم سره د اطمینان نه ډک او د معنوي خوښۍ ډېرې لويې خبرې اواسباب هم شته نو داغم یې پر ټولو مسلمانانو سپک کړی .

یو خوداچې امیر المؤمنین رحمه الله تعالی له نړۍ ستر ګې پټې کړې خو د صلیبي اتحاد له لورې د هېواد د اشغال نه وړاندې او د اشغال نه پس یې دښمن ته دیوې کوچنۍ لمحې لپاره هم سر ټیټ نکړ او نه یې په خپل عمر کومه داسې کوچنۍ خبره یا حر کت وکړ چې د افغانانو پر تاریخ تور ټکی شي بلکې هره خبره او هره کړنه یې تاریخ جوړونکې وه

کفري نړۍ خو کفري ده پر اسلامي نړۍ مسلط کابو ټول حاکمان چې تاریخ شرمونکي دي نو دامیر المؤمنین دهمدې تاریخ جوړونکی شخصیت سره دنړۍ نه تلل دمسلمان ملت لپاره ډېره دخوښۍ اوافتخار وړ خبره ده .

دامیر المؤمنین رحمه الله په اړه ددښمن ناکامي هم دمجاهد ولس او ټول مسلمان ملت لپاره دډېر ستر اطمینان خبره ده .

هو ! هغه چې دهېواد نه دیوې ورځې لپاره هم بېرون ونه وتلو خو بیا یې هم داخلي او خارجي دښمن سره له ټولو کوښښونو په ژوندي نیولو یا وژلو ونه توانېد ددښمن دا ناکامي او دخپل امیر په اړه ددې سترغم نه دمسلمانانو بچ کېدل د ټولو مسلمانانو لپاره دډېرې خوښۍ خبره ده.

اودنوي امیر ملا اختر محمدمنصور صیب پر ټاکلو چې داهل الحل والعقد دشورې ټول غړي متفق شول اوبیاور سره دامارت ټولو لویو او وړو مسئولینو ،عامو مجاهدینواومخلصوعواماو آن دنړیوال جهادي تنظیم القاعدې دقیادت پورې په ډېر لوی جوش اوجزبې بیعتونه وکړل او د اختلاف دراپور ته کېدلو کومه احتمالي وېره چې وه الله تعالی یې کلي مخنیوي وکړ داییادټول امت لپاره تر ټولوزیاته دخوښۍ خبره ده او ددې دلیل دی چې داسلامي امارت دمشرانو دامیر المؤمنین په پرېکړه و ډېر لوی اعتماد او اطمینان دی ؛ ټولو مشرانو د ملااختر محمد منصور په نوم په هماغه شخصیت اعتماد وکړ او خپل امیر یې وټاکلو کوم باندې چې امیر المؤمنین رحمه الله اعتماد کړی و او په ژوندیې خپل نائب جوړ کړی و.

امیر المؤمنین چې د ډېر لوی فراست څښتن و په خپلو ټولو ملګرو کې یې چې ملا اختر محمد منصور د خپل نیابت لپاره منتخبولو نو تر ټولو زیات اهلیت اوصلاحت یې پکې لېدلو او وربانديې یې تر ټولوزیات اعتماددرلودلو ؛د امارت داهل الحل والعقد شورې هم دهمدې زیات اهلیت اوصلاحیت درلودلو په اساس نوموړی خپل نوی امیر جوړ کړ چې سمدستي ورسره دامارت لویو او وړو ټولو مسئولینو ،عامومجاهدینو،دهېوادجیدو علماء کراموادهېود عامو مخلصو مسلمانانو بیعتونه پیل کړل اوښه په دیني جزبې او کامیابۍ الحمدلله دالړۍ روانه ده .

مکار دښمن ددرز اچولو ډېرې هڅې وکړې اودنړۍ مسلمانانو ته دتشویش وراچولو او دولس دبې اعتماده کولو په موخه یې دخپلو غلامو رسنیو له لارې پدې اړه ډېر زیات پوچ تبلیغات کول او ویل یې چې دنوي امیر دټاکلوپر سر طالبان داختلافاتو ښکار دي ؛ ددښمن دټولو هڅوناکامي الله تعالی ټولې نړۍ ته ښکاره کړه اوټولو ته روښانه شوه چې دلته هیڅ اختلافات نشته او په لوړه اوتېټه کچه داسلامي امارت ټولو مسئولینو بیعتونه کړیدي.

ولس او ټول مسلمان ملت الحمدلله پدې خبرې مطمئن دی چې زموږ نوی امیر به هم د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی په نقش قدم روان وي، دبهرني اشغال نه دهېواد اوملت ترآزادۍ اودلته دسوچه اسلامي نظام تر قائمېدلو به جهاد جاري ساتي هیڅکله به هم د خپل اصلي موقف نه تېر نه شي ؛ نه به د عالي اهدافو په سر د چا سره سودا وکړي ؛ نه به ددښمن اشغال ومني ؛ نه به خپل مسیر پرېږدي اونه به هم دښمن ته سرټیټ کړي ان شاء الله تعالی.

# طالبانو !

## مه ورخطا کیږئ

لیکوال: محمد امین بسمل

لمړی مې یو څو خوږې او ترخې خبرې واورئ.

سمه ده، چې دمګړۍ غلیمانو له هرې خوا په تاسو هر اړخیزې فزیکي او رواني حملې راوړې دی دوی غواړي ستاسو د کلونو کلونو سربښندنې په سیندلاهو او زموږ ګران افغانستان د خپلو ګوډاګیانو په وسیله تجزیه او نور هم خوار او زار کړي.

خو پام چې وارخطا نه شئ دا خو تاسو واست، چې د دری نیمو لسیزو د هرې خوا له جنګیالیو څخه ربښتیني، غښتلي او خورا اتل وځلیدئ ځکه چې:

- تاسو په خپل دین او ګران افغانستان مین یاست.

- تاسو د خپلې دینې فریضې له مخې د وروڼو قومونو یووالی غواړئ.

- تاسو واست، چې دآمو په څوکو مو د ګران او واحد افغانستان بیرغ ورپاوه.

- تاسو واست، چې ملي ناموس او فردي ناموس مو محفوظ کړ.

- تاسو واست، چې زموږ د کلونو کلونو بې خوبه، ستړي اوسر ګردان ولس ته مو ارام او امن را وړ.

- تاسو یاست، چې له غصب، تجاوز او ځان پرسونې څخه کر که لرئ.

- تاسو په ډیرو کمو امکاناتو ډیر څه کولای شئ.

- تاسو ته د وطن غرونو او راغونو، کلیو او بانډو خپله غېږ پرانیستې پرې ایښې ځکه خو اولس دعدل او انصاف فیصلې په تاسو کوي.

- تاسو د وطن د مور هغه سرشار، سربښندونکي او نه وېرېدونکي زامن یاست، چې که خدای مه کړه وارخطا او یا د دښمن په لمسون سره جدا شئ نو هم به ځان، هم به ایمان او هم به ګران افغانستان له لاسه ور کړئ.

پوهېږم، چې زما په دې لیکنه به یو څو بې خبره کسان خوا بدي او ما به هم په آی. ایس. آی پورې تړلی وبولي.

په دې کې خو هیڅ شک نشته، چې جنرال حمید ګل د انګرېزانو د شومو اهدافو د پوره کولو په موخه زموږ له خپلو وروڼو او زامنو مانا طالبانو څخه خورا بده ګټه پورته کړه همداسې بدې ګټې یې زموږ له هغو نورو خود فروشو مجاهدینو څخه هم پورته کړې وې خو پنجابیان په هغوی دومره توانېدلي وو چې، په اوو ۷ ښاخونو یې جلا او یو بل ته لکه بلا وساتي.

د کابل په وینو لړلې کوڅې یې شهادت ورکوي البته دا هرڅه دیوې لویې نړیوالې او تورې ستراتیژۍ له مخې روان وو.

پاتې دې نه وي، چې همدې جنرال حمید ګل د افغانستان په تېرو شرمېدونکو ټاکنو کې له هغه غبرګ عبد الله څخه ملاتړ کاوه، چې وېیل یې:

غتې غتې بمونه پرې وغورځوئ.

بیا هم خپلې لیکنې ته راګرځم کله، چې نړۍ خور دا څیرونکی خېټور حیوان په دې وپوهېد، چې طالبان په خپل دین او افغانستان مین خلګ دي نو یې تورمخی پرویز مشرف د۲۰۰۱ز کال په نیمایي کې آلمان ته راولېږه او دآلمان صدر اعظم (ګرهاردشروردیر)هم د خپلو ملي ګټو د تحفظ لپاره د انګرېز له دې بدمخي اولوی جاسوس (پرویزمشرف) سره همغاړی شو چې په نتیجه کې یې سپینې ماښۍ د۲۰۰۱ز کال د سپتمبر په نهمه د (مسعود) د ټوپۍ له الوزولو څخه دوه ورځې وروسته په یوولسم د سپتمبر د نیویارک ډرامه راپورته او بشریت یې په شرمونو وشرماوه سیمې ته یې اورونه او جګړې راوړې او اوس خپله دتېښتې لار ورڅخه ورکه ده.

څه ښه یې ویلي دي چې:

ګربه میدان امدی می دانیم.

د یاد کال اکتوبر په اوومه نېټه انسان زېږېښوونکو ځناورو زموږ د ګران هیواد په زخمي زخمی جګر خورا بې رحمانه او ظالمانه بم ورۍ ترسره او ایله په دوو میاشتو کې یې خپل تالي څټې د مړ سترګي حامد کرزي په مشرتابه د ارګ زندان ته ورټېل وهل.

خو تاسو پیاوړو، په دین او ګران افغانستان مینو طالبانو خپل همت له لاسه ور نه کړ او د یوې نیمې لسیزې په پرله پسې او خورا سختو جګړو کې مو د هیواد غلیمان په ګانډو او تېښتې ته اړ کړل خو اه، چې مکار دښمن یو ځل بیا د تورمخو پنجابیان وپه وسیله ستاسو د وارخطایي او بدنامي په موخه لمړی له پر دي پال اشرف غني سره پټې ګوتې خوږې او بیا یې د سولې جعلي پروسه په کار واچوله او په تاسو کې یې یو څو کسان یا په زر یا په زور د (مري ) غونډې ته ورکش او نړیوالو ته یې وښوده، چې تاسو د کابل غبرګ سري او ټیټ سري ګوډاګي حکومت ته د تسلیمېدو په حال کې یاست دغه د انګرېز بچیان (پنجابیان) ستاسو د کلونو کلونو سرښندنه او اتلولي په سیند لاهو کول غواړي او غواړي، چې زموږ راتلونکي نسلونه ونه پوهیږي، چې مغرور او بدسترګي یرغلګران چا مات کړل همدا لوبه پاکستان د روسانو په خدمت کې هم کړې وه څکه خو اوس له مسکو سره هر اړخیز تړونونه لري.

ګرانو لوستوکو ګرانو افغانانو!

سوګند یادم، چې په هیڅ یو سیاسي سازمان پورې تړ او نه لرم طالبان دې هم په خپلو لیکو اوتشکیلاتو کې زما نوم ولټوي که یې پیدا کړ نو بیا دې افغان ولس سخته سزا راکړي.

هدف مې دا دی، چې سازمانونه، ډلې او ټپلې مهمې نه بلکې هیواد اوخپلواکي مو مهمه ده نو راشئ خپل ګرېوان ته سرونه ټیټ او په هوش راشو په دې مانا، چې بې له سرښندنې تباه کېږو او د سرښندنې لمړي صفونه زموږ همدغو اتلو طالبانو نیولي، خو له بده مرغه، چې مشران یې تر سختو فشارونو او د پنجابیانو ترمستقیمو خطرونو لاندې دي.

# ویاړلی او ډاډمن ویر

لیکواله: حریا شملزی

دا دالله تعالی قانون د چي هر انسان ته یي د دنیا ژوند د مرگ په بدل کي ورکړي حتی دنیا هم بلاخره د یو ورځي د زیوال په بدل کي رامنځ ته شوي یو ورځ به دا هرڅه لکه ژوندي موجودات، غرونه، ځمکه او اسمانونه لمنځه ځي ټول انبیا کرام، صحابه کرام، تابعین، ایمه مجتهدین، جید علما او مشایخ چي دي دنیا ته راغلي نه هیریدونکي خدمتونه یي کړي او د اولسونو په زړونو یي پاچاهي کړي او دفراق تریخ وخت یي هم په خپلو احبابو لیدلي، دومره تریخ او ویرجن وخت چي یو ښځینه قلم یي له لیکلو عاجزوي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات ورځ ځومره غمجنه، ویرونکي او له زغم نه وتلي ورځ و بیا د اسلام هر خلیفه چي وفات شوي مسلمانان یي دردولي، ژړولي او په یو سخت امتحان کي غورزولي دي

زموږ د یوشتمي پیړۍ اتل او قهرمان بت شکن، د اسلام داعي، دجابر او ظالم کفر په وړاندي د ذلت سکوت ماتوونکي او د رسول الله صلی دالله علیه وسلم واقعي او متعهد وفا دار وارث، د ولا یخافون لومته لایم مصداق مجاهد، دوخت ولي الله، د غربي صلیب پروري قوي ټیکنالوجي په وړاندي په تشو لاسو جنګیدونکي مبارز او دالله د دین د نصرت په تکل د ژوندانه تر هرڅه شوي امیرالمومینین د ټولي نړۍ د مسلمانانو واقعي امیر، دکونډو او یتیمانو او دردیدلو خویندو، میندو او پلرونو د سر سایه، تکیه او د امیدونو یوازنۍ چراغ، په یویشتمه پیړۍ کي اسلامي سیاست ته په ډیموکراتیکه او فاسد دورکي د اسلامي خلافت عملي نمونه ښونکي امیرالمومینین له قومي، ژبني، سیمتي تو پیر نه پاک امیرالمومینین د وفات او فراق ورځ به ولي غمجنه، ویرنه او ډارنه نوي کټ مټ هم داسي خواشینونکي ورځ ده لکه د رسول الله صلی الله علیه

وسلم او دهغه د یارانو او د اسلام دنورو خلفاو د مسلمانانو لپاره ملا محمد عمر مجاهد تش یو امیر یا قاید نه و بلکي یوه بشپړه مفکوره او اسلامي نظریه و، دازادي او حریت رهبر و د الله تعالي په ځمکه د هغه د خوښ نظام پالونکي او پلي کونکي و، د رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه سنت مبارک جهاد في سبیل الله چي د اسلام مقدس دین یي د مکي او مدیني له کوڅو نه ده همده په وسیله د نړۍ گوټ گوټ ان تر خراسان و اسپهان پوري رسولي همدغه مرحوم له اوږدي وقفي وروسته چي مسلمانان ټول د مادیاتو او عیاشیو ښکار شول د کفر غلامي او اطاعت هیڅ ورته عار نه ایسیدي او افغانان چي د یو اسلامي نظام لپاره یي په میلونو شهیدان ورکړي او دروسي او کمونیستي واکمنۍ مخه یي نیولي و او وروسته دخپل منځي جنگونو او قدرت غوښتني له وجي یي هیواد تر روس او بل هر کفري هیواد بدتر کړي و د جهاد نوم پیغور او وحشت و همدغه امیرالمومینین دالله تعالی امر جهاد او د رسول الله دغه ویاړلي سنت ژوندي کړ او عملا یي د نړۍ کفري او طاغوتي نهضتونه او کلیسایي واکمنان و پوهول چي اسلام د همت او غیرت دین ده، د اسلام هر اړخیز نظام د بشریت د ټولو حقوقو ضامن او مترقي نظام د او دالله د دین نصرت یي عملا او واقعا د اولسونو په زړونو کي ځاي کړ حتي په زرگونو انسانانو د الله د دین دنصرت په لاره کي ځانونه استشهاد ته اماده کړل......هو امیرالمومینین دا ثابته کړه چي د الله د دین ننگه زموږ د نصرت او ثبات باعث گرزي...... هو امیرالمومینین موږته دا هم ثابته کړه چي عزت په مادیاتو، ساینس او ټیکنالوجي، قومي یا نظامي ځواک پوري تړلي نده بلکي یوازي دالله دین ته ځان تسلیمول او په هغه پوره عمل کول که څوک د الله دین ته واقعا مخلص شي د ختمو

په کور کي به اوسي د دنيا له ټولو اسانتياو به بې برخي وي هيڅ يو پوهنتون اکسفورډ او اظهر به يې په سترګو نوي ليدلي کولای شي چې د کفري روشن فکرانو د سردرد باعث شي او د ميلياردونو، تورو او سپينو مسلمانانو په زړونو حاکميت وکړي د نړۍ په ګوټ ګوټ کي يې په فراق ښځينه ماشومان په چيغو چيغو وژاړي او د هر مسلمان په دعا کي يې ځان ته ونډه لرلي وي دا کومه فزيکي يا علمي او مادي قوه نده بلکي يوازي او يوازي د الله سره ريښتوني مينه او له دين سره يې اخلاص او په عمل کي يې اجراده

ولي په دي ستر وحشتناک وير کي يو ستر او ډاډمن ويار تسليت او نيکمرغي نغښتې ده ...... هو طالب جانه دا يوه ستره الهي ورکړه ده هر هغه زړه چې نن د اميرالمومنين په فراق ويني تويو او سترګي يې اښکي څڅوي که د د کورنۍ ده که د اسلامي امارت مشران، د سنګر طالبان دي. او يا عام مسلمانان دي اقلا دومره فکر دي وکړي چې موږ په يو يشتمه پيړۍ، کي د کفر او فساد په پيړۍ، کي د نفسا نفسي په پير کي، د شرک او بدعت په پير کي موږ يو داسي امير درلودي له هغه سره مو بيعت کړي و د هغه په قربيانو او حتي د سنګر په ملګرو کي يې شمار و موږ تر خپل اولاد ورته ګران و دا مو ستر ويار ده او ددي نه ستر او تاريخي ويار هغه دا چې اميرالمومنين موږته په ميراث کي هغه نظام پري ايښي چي ميلينو ليترو وينو او د الله د واقعي نصرت بديل د اسلامي امارت، د شهداو او غازيانو کاروان لايحه، د علماکرامو او حق علماو اجتماع چې د همدوي په وسيله موږ کولای شو ځان د رسول الله په ويارمن امت کي شمار کړو او د الله تعالي هغه بندګان ځانونه وشميرو چي په قران کريم کي يې داسي تعبير کړي چي زه به يو قوم يا ټولي پيدا کړم دوي ب لماسر مينه لري او زه لدوي سره د الله په لاره کي به جهاد کوې او د ملامت کونکي ملامتي ته به غوږنه نيسي او بيا به زه ددوي په زريع د خپل دين ساتنه کوم راشي بيړه وکړي، تعهد وکړي او قسم وکړي چې د اميرالمومنين دغه ويار او د تاريخ له ورقو ځان ونباسو او په اسلام او اسلامې امارت پوري ټينګ لاسونه ونيسو او د اميرالمومنين او صاف په ځان کي پيدا کړو له قوم پرستي، جهت طلبي، قدرت طلبي ځان وساتو د اقربا پروري او خيښ پالني په ځاي لکه اميرالمومنين مسلمان او مجاهد پروره شو يو په بل اعتماد وکړو د اميرالمومنين د کورنۍ، مخلصو ملګرو قدر وکړو او داميرالمومنين د زعيم په ټاکلو کي مشاورت وغواړو او کورنۍ ته زياته توجو وکړو ځکه اميرالمومنين پخپل ژوند کي هيڅ امتياز نده ورکړي او د اختلاف په کلکه مخه ونيسو او خداي مه کړه دد غه ستر الهي ويار د بربادي او انتشار باعث ونګرزو موژ په خپل مشرتابه او رهبري شوری پوره اعتماد لرو ولي بيا هم داسي يو نقطه پري نږدو چې ددښمن دخوښۍ او د مسلمانانو د خفګان او اميرالمومنين د روح د نا ارامي باعث وګرزې که موژ بيا تعهد وکړو او د الله دين ته مخلص شو دغه وياړلي وير او غم به مو حتما ددنيا او اخرت په سرلوړي بدليږي

الله تعالی دي اميرالمومنين په جنت کي د حضرت محمد مصطفي صلي الله عليه وسلم او شهدا و سره يو ځاي کړي دد کورنۍ او ملګري دي الله توفيق ورکړي چې داغم او وير نه بلکي ويار او افتخار وبولي او د بريمن عزم د بريا لپاره متې را ونغاړي او د مشرتابه پوره پوره اطاعت وکړي له نوي مشرتابه او رهبري شوری نه مو يو هيله او ارزو ده هر هغه کس چې نفاق ته لمن وهي نور دي د الله لپاره له صف نه وشړي او يادي فعاليت ور فلج کړي

د اسلامي امارت د لا بريا او بقا په هيله

خور مو حريا شملزۍ

# پاو قاره امیر

**لطف الله خیر خوا**

دوه زره لسم کال و. "جنګ" ورځپاڼه کې مې د جماعت اسلامي د یوه مشر کالم لوست. کالم کې یې د امارت پر مهال کندهار ته د خپل یوه سفر رویداد لیکلی و. د ده له قوله، چې موږ سفر ته ډېر تیاری نیولی و. زیرک او تجربه کار وفد مو برابر کړی و. دوه درې ورځې مو د ملاصیب لیدو ته انتظار وکړ. کله، چې د ملاقات شېبې راورسېدې، زموږ د پخو او خولور و سټو اروا وې والوتې.

وایي موږ د نړۍ د رهبرانو د تکلفاتو فکر کړی و، مګر ډېره ساده ودانۍ کې او ډېر ساده لباس کې یو معزز، مرعِب او چوپ انسان سره مخ شوو. وایي زموږ وفد، چې سخت متاثره و، نو زموږ پخو نطاقانو او خبرلوځو هم خپلې خبرې منظمې ونه کړی شوې.

وایي موږ د نړۍ حسابونه ارزولي وو. په سیاستونو وغږېدو. ستر اتیژۍ مو ورمخې ته کړې، د خبرو جریان کې ترخه هم راتله او خواږه هم، مګر د دې موقر انسان تندی نه په خوږه له خپل حالته بدل شو، نه په ترخه ګونځې شو. وایي کله مو چې خبرې پای ته ورسېدې، ډېر لنډ ځواب یې راکړ: ستاسو خبرې پر ځای دي، خو موږ دغسې فکر نه کوو. زموږ لار بېله ده.

د لیکوال تبصره دا وه، چې څوک دین ته کار کوي، هغه باید د ملاصیب په څېر همغه ډول فکر وکړي، چې دین ته پرې کار کیږي، نه دا، چې زموږ د تنظیمونو په څېر د دین په نوم، د دین مخه ونیول شي.

استاد مزمل زموږ څو ملګرو ته یو مجلس کې وویل، چې زه په مجلسونو او ملاقاتونو کې نه ډارېږم، خو ملاصیب ته، چې ورتلم، پښو مې زور نه اخیست او هغه څه مې، چې ویل غوښتل سم مې ونه شو ویلی.

دغه رعب د هغه وقار برکت و، چې ملاصیب د یو غښتلي امیر په توګه درلود. د مسلمانانو د امیر په توګه د هیڅ دربار ته ونه درېد. هغه خلک، چې په ډېره ناځوانۍ ملاصیب پر دیو ته منسوبوي، نه دي پوهېدلي، چې همدغه جنرالان د درانه ملاصیب په مخ کې لکه د ملازمانو ووتل نوتل. زه نه پوهېږم، چې کیسه به تر کومه سمه وي، خو د عوامي نیشنل ګوند مشر اسفندیار په یو ویډیو کې د "نصیر الله بابر" له قوله وایي؛ یوه ورځ مې ملاصیب ته د ډېورنډ کرښې خبره یاده کړه. وایي په یوه پټکه یې له کوره راوویستم!

## د امت د وقار مجدد

د اسلامي امت تر منځ د ورورولۍ پولې د "سایکس پیکو" پولو نړولې وې او دي. داسې مهال، چې دې پولو واقعي بڼه نیولې او هر مسلمان ونامسلمان یې لکه عقیده داسې مراعاتوي. د دغو وضعي قوانینو نړول څه، چې وقتي مخالفت یې په نړۍ کې د یوه ستر جرم برابر دی، خو هغه څوک، چې "حدود الله" پېژني هغه پوهیږي، چې د کومو حدودو پایمال جرم دی او همده ته جوتیږي، چې د وضعي حدودو نړول څومره اسان دي.

په نړۍ کې د جهاد د ستر رهبر اسامه بن لادن پر ضد، چې نړۍ متحر که شوه او د خپل امت د دفاع په تور یې نړۍ ته مجرم معرفي کړ، هیڅ جنرال دا نه شوه کولی، چې استکباري طاقتونو ته ان څه عذر وکړي، خو همدا د وقار ښښتن او د دفاع ځلی د حدود الله د ساتنې په پار په هسکه غاړه ودرېد او د نړۍ د بې ساري تبلیغ و پروپاګند تر منځه یرغه یرغه ووت.

هیڅاونه کړی شو، چې د ده په خاوره دې د هغه یمني الاصله مسلمان ویښته سپک کړي. ټولې نړۍ ولیدل، چې هغه د جهادي عظمت منار څېر ته هسک شو او څېر ته ونړېد! زه خو هغو خلک ته حیرانېږم، چې څنګه د غه د امت په مفهوم پوهېدلي امیر ته د محدودیتونو نسبت کوي. پولې نړول یا فیزیکي دي یا معنوي، چې د نړۍ هر محروم انسان ستا په خاوره د مصؤنیت او تایید احساس وکړي. هغه امت، چې خپله معنا یې یوازې تر کتابونو او درسونو منحصره وه، همداسې یو عزام انسان ته اړ و، چې دا معنا له کتابونو واقع ته راوباسي. عملا ولیدل شي او دا ښکاره شي، چې دا معنا قابلِ دید او تطبیق ده. هغه معنا، چې سایکس بیکو د مسلمانانو لاشعور ته غور ځولې وه او ځینې خلک، چې د همدې نقشې په پلي کېدو پر امت مسلط شوي وو، هیڅ نه پوهېدل، چې دغه د وقار غر څنګه په دا زلزله رېزه فضا کې هم سو کاله دی.

## په سیاست کې د اسلامي رموزو احیاء

د خلافت په نړېدو هغه نورمونه نړېدي ورک ول، چې په اسلامي پېرونو کې کارېدل. لکه خلافت، امارت، امیر المؤمنین، شریعت، اهل الحل والعقد، بیعت، سمع وطاعت، شرعي حدود، ولاء وبراء، جهاد...

دغه دوقار او ننګ ځلي یو ځل بیا واکمنې حلقې ته پورته اصطلاحات ننویستل. له ۷۶ کلونو وروسته جهاد د یوې خاورې د واکمنانو بنستیز کار و، بلکې داسې کار، چې تر سقوطه نورو کارونو ته ترې وزګار هم نه شول او سقوط هم داسې، چې بېرته یې په هسک وربرابر کړل.

کله چې دی ودرېد.. کله چې ده غاړه نېغه یوړه.. کله چې ده په مستکبرینو ورمېږونه مات کړل..خلک پوه شول، چې هر مهال ځان ګټل کیږي. خپل حق تر لاسه کیږي او هر مهال، چې اراده وي، ټینګار او تعهد وي هره ورکه پیدا کېدی شي او هره سخته اسانېدی شي.

هغو خلک، چې د خلافت د اعادې لپاره یې تحریکونه تاسیس شوي وو، دا مهال په طاغوتي کړیو کې ویلي کېدل. هغو تنازلاتو ته اړ شوي وو، چې هیڅ مسلمان ته یې الله جل جلاله او رسول اجازه نه ورکوي، هغه انسان خولا پر ځای پرېږده، چې د خلافت د احیاء لپاره د یوه متعهد انسان په توګه میدان ته راوتلی وي.

دغه طبقه په طاغوتیانو کې ورننوتل او تازه تازه یې د ماتې ترخه تر ستوني ول، چې دغه د امت د قضایاو انسان د نړۍ حسابونه بدل کړل. خلکو ته یې وښووله، چې "پرېوتي" انسانان لار پرېږدي. پرېوتي مبارزین د خپلې مبارزې لپاره پر دي شرایط او ظروف مني. وروېې ښووله، چې موږ د خپلې مبارزې لپاره خپل شرایط ټاکو، موږ خپلو شرایط په خلکو منو او همغه څه کوو، چې موږ پرې ایمان لرو!

## د ایمان او ثبات غر

د امریکایانو د یرغل پر مهال ملاصیب یوه خبره کړې. باور مو وشه، چې یو عالم زور په کې دی، یو اطمینان په کې دی، یو سکون دی په کې. وایي ملاصیب ته چا وویل، چې امریکایان وایي موږ اسمان نه نیم انچ شی ګورو. نښه رانه نه خطا کیږي. وایي ملاصیب وویل : دا دوی وعدې دي، مګر زموږ رب هم وعدې کړې، ګورو، چې د چا وعده حقه ده. دوی دې خپل کار وکړي، موږ به خپل کار کوو.

د امریکایانو د غورځو پرځو په اړه ترې یو بله مشهوره خبره هم روایت ده. د امارت اخرنیو شپو کې یې مجاهدینو ته وینا کوله، چې : امریکایان ټکنالوژي لري، وژل به کولی شي، خو مرګ نه شي دفع کولی.

یوه وینا، چې ما خپله اورېدلې او امریکایانو ته یې پر افغانستان د برید پر مهال په ډېره اطمینانې لهجه کړې وه. ورته وایي دا نو شاهي نظام نه دی، چې تاسې راشئ، موږ به درنه لاړ شو. دلته مجاهدین دي، منظم قطعات دي، غرونو ته به درنه وخیژي، هسې به ځان هم خراب کړئ او موږ هم.

یو مشر، چې په مادي لحاظ دومره کمزوری وي، څه ډول دومره اطمینان لرلی شي، بې له دې چې خپلې عقیدې دومره ایمان او ثبات وربښلی وي. پرون یو مولوي صیب د شیخ حسن جان په حواله ویل، چې هغه به د ملاصیب په اړه ویل : د شرح عقاید او خیالي حافظ هم دومره کلکه عقیده نه لري، لکه ملاصیب.

رښتیا هم، چې د عقیدې ډېر شاګردان او استادان یې ایمان او ثبات کې شا ته پرېښوول. دغو شاګردانو او استادانو به کېدی شي په لسګونو کرتې په عقایدو کې د خلافت وامارت و ولاء وبراء درسونه ویلي او تدریس کړي وي، مګر دغسې به یې چا عملي کولو ته ملا نه وي تړلې، څه چې تصور به یې هم نه وي کړی.

رحمه الله رحمة واسعة، و أدخله فسیح جناته، و رزقه الفردوس الأعلی.

آمین

# ملا محمد عمر مجاهد و مړ؛ څو

## یو ستر جهادي او اسلامي فکر یې تر شا ژوندی پرېښود

لیکوال: حماد نیازی

د یوویشتمې پېړۍ د جهاد مجدد، د یوویشتمې پېړۍ د سنګرونو اتل، هغه څوک چې روسته له سلو کلونو یې نړیوالو ته د شرعي نظام ژوندۍ نمونه څرګنده کړه، هغه څوک چې ټول اسلامي ملت ته یې د جهاد روحیه ورکړه، هغه څوک چې د صبر او استقامت سمبول وو، هغه څوک چې په خپله ټوله واکمنۍ کې یې د هیڅ ډول دنیوي امتیازاتو په پار تنزل ونه کړ، هغه شخصیت چې په تاریخ کې یې نوی باب جوړ کړ او د یوه مسلمان (اسامه بن لادن رحمه الله) لپاره یې ټوله واکمني دړې وړې کړه، هغه امیر چې د حضرت محمد او ابراهیم علیهما الصلوة والسلام سنت یې راژوندي کړل او د بودا مجسمې یې رانسکورې کړې، هغه ستر امیر چې د نړۍ ټولو مجاهدینو ورسره بیعت وکړ او د هغه په بیعت یې افتخار کاوه، هغه امیر المؤمنین چې د ټول مظلوم اسلامي ملت سترګې ورپسې وې د خدای له قانون سره سم (کل نفس ذائقة الموت) د اجل داعي ته لبیک وکړ او له دې فاني دنیا یې د تل لپاره سترګې پټې کړې.

هو کې!

هغه څوک چې د فلسطین بورو میندو، ورارو خویندو، ګونډو ناوکیو او ببرسرو یتیمانو یې د راتلو لار څارله، هغه څوک چې د چیچنیا، بوزنیا، عراق، کشمیر، فلسطین، بورما او... د ټولې نړۍ مظلومو مسلمانانو یې تر ژونده هېلې تړلې وې او د یاعمراه سوې او مظلومانه کړیکې او چیغې یې وهلې له دې فاني دنیا ولاړ، څان یې مرګ ته وسپاری.

نن چې د نړۍ د مظلوم اسلامي ملت له سره سایه لرې شوه، ټوله اسلامي نړۍ پسې غمجنه شوه، ټولې اسلامي نړۍ ورپسې د وېر تاندې او چیغې وکړلې، پر ټوله اسلامي نړۍ د غم ټغر خپور دی، هر مظلوم مسلمان داسې انګیرې لکه زړه چې یې له کوګله وتلی وي، لکه ټوله نړۍ چې ورانه شوې وي او لکه...

امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله و مړ، په مېړانه و مړ، داسې و مړ چې ټوله اسلامي نړۍ، په تېره بیا افغانان به یې تر قیامته په ژوند او مرګ سرلوړي ګرځي او افتخار به پرې کوي.

ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د رسول الله یو رښتینی امتي وو، داسې امتي چې د هغه صلی الله علیه وسلم په خبر یې په هیڅ میدان او هیڅ وخت کې ډار نه دی کړی او نه یو قدم روسته شوی دی.

ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله روسته له هغې چې د نړۍ کافرانو ورته راټول او یو موټي شول، د هغه اسلامي امارت یې را وپرزاوه او تقریبًا ۴۷ کفري، مجهز او په هر ډول عصري وسلو بار ځواکونو یرغل وکړ، په داسې سختو شرایطو کې لا هم ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله له افغانستانه یو قدم

دباندي ونه ووت او دلته په داخل کې یې تر مرګه د مجاهدینو رهبري کوله.

شاید د مرحوم مجاهد دا تاریخي او شاهکارانه جرأت تاریخ مات نشي کړای.

مسلمان او افغان ملته!!!

په دې کې هیڅ شک نشته چې مرحوم ملا محمد عمر مجاهد له دې نړۍ د مرګ سترګې پټې کړې دي او بیا نه راځي؛ خو که مرحوم مجاهد له فاني نړۍ لاړ، نو تر شا یې داسي ځوک پرېښودل چې ۲۰ کاله یې د صبر، استقامت، ورورولۍ، خواخوږۍ او د جهاد سره د مینې درس ورکړ.

داسي ځوک چې اوس پر هر څومره زورور دښمن ورزغستلای شي، داسي ځوک چې په نازکو سینو پوري باروت تړلای شي، داسي ځوک چې د مظلومو مسلمانانو چیغې یې په غوږو کې د تل لپاره انګازې کوي او په زړونو کې یې د انتقام جذبې راټوکیږي، داسي جذبې چې د ژوند ټول خواږه پورې ورته زهر ښکاري، داسي جذبې چې ځان لولپه کوي؛ خو هدف ته یې رسوي.

مرحوم مجاهد تر شا هغه ستري هستۍ پرېښودلې چې ۱۴ کاله یې نړیوال کفر ته د سر په کاسه کې اوبه ورکړې، سپره امریکا یې له صفر سره ضرب کړه او لویه ناټو یې د برم او راج له هسکه برجه لاندې راوغوزوله. داسي هستۍ چې کفر ته یې داسي درس ورکړ چې بیا ځل به پر کوم مظلوم مسلمان لاس پورته نشي کړای، کوم مظلوم مسلمان ته به برګ ونشي کتلای او...

ملا محمد عمر مجاهد ومړ؛ خو په اسلامي ملت کې د جهاد مړ روح یې راژوندی کړ، ټولې اسلامي نړۍ ته یې جهاد وغزاوه، هر ځای یې د← مظلومانو کړیکې او اسوېلې واوریدل، د نړۍ پر سر یې ظالمانو ته ځمکه سره تبۍ کړه او پر ټولو ظالمانو یې د جهاد او انتقام کړۍ راتاو کړې. مرحوم مجاهد ومړ؛ خو تر شا یې داسي علماؤ پرېښودل چې عملاً یې هم د جهاد، خواخوږۍ، ورورولۍ او مصلحت درس ویلی دی او هم یې دین زده کړی دی.

داسي علماء یې تر شا پرېښودل چې هم علماء دي، هم سیاست پوهان، هم مجاهدین، هم د مسلمانانو خواخوږي او هم د ټول اسلامي ملت لارښودونکي.

مرحوم مجاهد ومړ؛ خو جهادي فکر یې راژوندی کړ، هغه قراني ایاتونه او هغه مبارک حدیثونه یې عملي کړل چې د جهاد او د مظلومانو د انتقام په اړه رانازل شوي او را روایت شوي وو.

مرحوم مجاهد ومړ؛ خو د صحابوو رضوان الله عنهم اجمعین سیرت یې راژوندی کړ، د قیصر او کسری په څېر امپراتورۍ (امریکا او ناټو) یې راوپرزوله.

مجاهد ملته!!!

د مرحوم مجاهد رحمه الله په مرګ و بر مه کوئ، بلکې د هغه په مړیني مرګ وویاړئ، فخر پرې وکړئ او د هغه د ارمانونو د پوره کولو لپاره متې راونغاړئ!!!

ان شاء الله بری زموږ دی او ذلت د کفر او د کفر د پلویانو په برخه دی.




ملا محمد عمر ولاړ، خو ځانته یې په افغان تاریخ کې ځای پرېښود: دا چې دا ځای څه دی، غوره قضاوت به پرې هغه مهال شونی وي چې د اوسني پېر ترخې هېرې شي او د هماغه مهال نسل د ۱۳۵۷ کال د ثور تر کودتا وروسته ټول غمجن پړاو په سړه سینه وسپړي او څېړي.

ښايي د خبريالانو په ډله کې تر ما له مرحوم ملاصاحب سره ډېرې مرکې چا نه وي کړي. يو ځل مې پر ۱۹۹۶ کال چې د بېل کلنټن اداري پر خوست د کروز توغنديو بريد وکړ، نيمه شپه له خوبه راويښ کړم او نظر مې يې واخيست او خپور کړ. نژدې پر هره مهمه پېښه يې تل زما ټيليفونو ته ځواب ويلی او مرکې ته يې غاړه ايښې ده. آن ترېپېدو لږ وړاندې يې وروستۍ مرکه هم د ۲۰۰۱ کال په ډسمبر کې له ماسره وکړه او تر هغه وروسته يې بيا چا غږ وانه ورېد.

د ۱۹۹۶ په اپرېل کې چې کله ملا عمر د زرو روحانيونو د يوې ډلې له خوا «اميرالمؤمنين» و ټاکل شو، د لنډې کتنې له پاره مې د کندهار د والي په دفتر کې ورسره وليدل او بنډار مو وکړ. تل ورو غږېده، غوسه يې نه کوله، جملې يې لنډې او ساده وې، په خبرو کې يې د نورو ملايانو خلاف د مذهبي متونو پر ځای ډېر کليوال سمبولونه او معيارونه خوښول. يو ځل چې کله د اسامه بن لادن او امريکا ته د طالبانو د ګواښ پوښتنه ترې وشوه نو ده په ډېره ساده لهجه وويل: «... زموږ پښه په خپله پايڅه کې بنده ده«...

بل ځل چې کله ايران په مزارشريف کې د خپلو «ډيپلماتانو» د وژل کېدو په غچ کې لسګونه زره عسکر د افغانستان پولې ته راوخوځول، ملا عمر له هغوی نه د سړې سينې د غوښتلو ترخنګ وويل: «... نو که چېرې ونه شوه بيا به يې تر اصفهانه پسې واخلو«...

د تهران پر ځای د اصفهان يادول يوه تاريخي تداعي وه. ده غوښتل ايرانيانو ته د هوتکي شاه محمود دوران ورپه زړه کړي چې په اصفهان کې يې د فارس صفوي واکمنه وپرځوله او هلته يې ځان واکمن کړ.

البته د ملا عمر له نامه او له طالب غورځنګ سره د افغانستان د ولس او ټولنې ډېرې ترخې او غمجنې شېبې هم تړلې دي، چې زه پر هغو دلته غږېدل نه غواړم. يوازې مې د طالب مشرتابه له خوا د ملا محمد عمر د مړينې د رسمي تاييد په پلمه دا څو ټکي له خپلو خاطرو څخه له تاسې سره شريک کړل.

د داوود جنبش له فيسبوک پاڼې په مننه

# افتخار مو وه ...

سمیع خوږیانی

انا لله وانا إلیه راجعون

کله چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفات شو خلکو په خاصه توګه حضرت عمر فاروق - له ډیره غمه نه باوروله، او نور صحابه یې هم له دې منع کول چا به چې د هغه صلی الله علیه وسلم په وفات ژړل، حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه وروسته له دې چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم یې وکوت چې وفات شوی، پاڅید او ویې ویل: {من کان یعبد محمدا فإن محمدا قد مات، ومن کان یعبد الله فإن الله حي لا یموت}. بیا یې دا ایت تلاوت کړ: (وما محمد إلا رسول، قد خلت من قبله الرسل، أفإن مات أو قتل انقلبتم علی أعقابکم ومن ینقلب علی عقبیه فلن یضر الله شیئا، و سیجزي الله الشاکرین) آل عمران.

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وایي: په الله قسم لکه صحابه چې په اول ځل د ابوبکر صدیق له خولې دغه آیت اوري، بیا مو باور شو او زړه ته مو تسکین وغورځید.

دغه سخت الفاظ کارول د حضرت ابو بکر صدیق له خولې په دې معنا وه چې د پیغمبر وفات حق دی، لکه څنګه چې نور انبیاء په دغه حقه لار لاړ دي دغسې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هم پر دغه لار ولاړ، بل دا چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم خپل دین پوره کړ او ددې مخکې وړلو مسؤلیت د صحابوو پر غاړه و نو د مسؤلیت، تلقین، صبر او استقامت لپاره ابوبکر صدیق مسلمانانو ته دغه جملې وویلې، غوښتل یې چې د دغې غم پر ځای مسلمانان خپل مسؤلیت ته متوجه شي، همغه وو چې دغه کلمې د خلکو زړونو ته وغورځیدې او د غم پر ځای خپل مسؤلیت ته متوجې شول، تر څو د ټولو پر خوښه ابوبکر صدیق د مسلمانانو اول خلیفه وټاکل شو او د اسلام دین د قوي ایمان او قوت په زور په نړۍ کې خپور شو، پر دغه غټ غم صبر او بیا استقامت مسلمانان د کامیابۍ او بریالیتوب لورې ته مخ کړل.

نور نو مونږ ته پکار دي خپل راتلونکي ته پام وکړو، تیر غمونه شاته پریږدو او د خپل دین مسؤلیت پر غاړه واخلو.

مسلمانان باید د ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله علیه مړینه خپله ناکامي ونه ګڼي، ځکه غم زیاتول مو ناکامۍ ته مخه کوي خو غم شاته پرېښودل مو د کامیابۍ سبب ګرځي، ځکه د یو انسان لپاره دنیا کې دوه مرګونه نه وي او هغه یو حق او راتلونکی وي. کله چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفات شو ابوبکر رضي الله عنه یې سر ته ورته کښیناست په ژړا شو او ویې ویل: زما مور او پلار دې له تا ځار او قربان وي، الله ستا لپاره دوه مرګونه نه دي ټاکلي او هغه یو مرګ چې ټاکلی شوی دی تاته راغلی او ته وفات شوې.

هو! ملا عمر ومړ، نر ومړ، ازاد ومړ، غلام نشو، په مړینه یې ویاړ په کار دی، په نړۍ کې یې هېڅ پیغور ځان، کورنۍ او اسلامي امارت ته پرېنښود، نن چې د نړۍ مسلمانان د هغه په مړینه اوښکې تویوي ترې څرګندیږي چې ملا محمد عمر رحمه الله څومره د نړۍ مسلمانانو ته محبوب و. الله دې د جهادي فکر دغه مجدد رهبر حشر له نبیانو، شهداو صالحینو سره وکړي.

رحمه الله رحمة واسعة واسکنه فسیح جناته ورزقه الفردوس الأعلی. امین.

# هغه أمیر چې

## په وفات یې ټول أمت په ماتم کې ډوب شو

لیکوال: قاري حبیب

له غزې تر بروناې، له طنجې تر جاکار تا، له قفقاز تر کاشغره او له شام تر کندهاره نن د رسول الله صلی الله علیه وسلم أمت په یوه مشترک درد دردمن دی، فیسبوک، ټویټر او نورو د خواله صفحو د ماتم تور کالي په تن کړي، له هرې خوا سلګۍ دي، ویرنې دي، تسلیتونه دي او د مغفرت دعاګانې دي، دا دعاګانې او ویرنې که د الفاظو او رسم الخط له اړخه سره بیلې دي، په پښتو، عربي، ترکي، فارسي، انګلیسي، اردو، بنګالي، ازبکي، کردي، آزري او نورو مختلفو ژبو دي، مګر مطلب او محتوا یې یوه ده.

ټول د اسلامي امت مخلص او ویاړمن رهبر ملامحمد عمر مجاهد ته د مغفرت دعاګانې کوي، نن د امت ټولې سلګۍ او ټولې اوښکې همدې ویر ته وقف شوي دي، نن د افغان العرب، افغان الشیشاني او افغان الازبیک کورنیو ماشومان او تورې سرې د خپل هغه محسن په رحلت اوښکې تویوي چې دوی ته یې په سخته ورځ پناه ورکړې وه، دوی یې داسې مهال په غیږ کې ونیول کله چې ټولې دنیا وشړل، له دوی سره یې د عقیدوي رشتې خپلوي په ریښتیني معنی وپالله او ددوی لپاره یې خپل برحاله حکومت په داو کړ.

نن د ټویټر شبکه په مختلفو ژبو دې هیش ټاګ په سر اخیستي چې #صلاة_الغائب_علی_الملاعمر_بعد_الجمعة

نن به د جمعې له لمانځه وروسته د اسلامي نړۍ په لر او بر کې د تکبیر غږونه پورته شي، د المغرب له ساحله بیا د بحر الکاهل تر څنډو به د ملا محمد عمر مجاهد غائبانه جنازې وشي، د الله دربار ته به په مختلفو ژبو، له مختلفو سیمو او رنګارنګ ستر ګو څخه د اوښکو نذرانې او د مغفرت خواستونه وړاندې شي.

دا وضعیت موږ ته ثابتوي، چې موږ سره یو یو، زموږ د عقیدوي خپلوي رشته لا هم مضبوطه ده، استعماري کرښو که زموږ اجتماعي وجود سره بیل کړی خو زموږ روحونه لا هم سره تړلي دي او که څوک د ملامحمد عمر مجاهد غوندې د دغه ګډ وجود او عقیدوي خپلوي حقیقت په رسمیت وپیژني او پالنې ته یې ریښتیني توجه وکړي، نو دغه پټ اتحاد نړیوالو ته رابرسیره کولی شي.

د ملاصاحب وفات ولې داسې په عالمي سطحه بدرګه شو؟

ملاصاحب خو د الازهر یا علیګړه کومه ډګري هم نه درلوده، ملاصاحب له خپلې ځیږې پښتو پرته په بله ژبه روان نه شوای غږیدای، ملاصاحب خو د کوم وتلي پوه یا نظریه پرداز په حیث هم نه پیژندل کیده، مګر له دې سره سره یې چې امت دومره دروند تلي، معلومه ده چې اوس مسلمانان ویښ شوي دي، اوس مسلمانان د هر حاکم کردار ته د دین او فطرت د مقاصدو له عینکو ګوري، اوس مسلمانانو لیکلیو اثارو او تصنیفاتو ته نه بلکې عملنامې ته ګوري او د هر چا قامت د هغه د عمل په مقیاس اندازه کوي.

په دې هیله چې مرحوم ملامحمد عمر مجاهد ته الله تعالی مغفرت وکړي او کردار یې د نورو لپاره د لارې مشال شي.

# که ملامحمد عمر مجاهد نه وای راپاڅېدلی ..

قاري سعيد

ـ د زرداد په پاټک به اوس هم انساني سپیان غپیدل.

ـ شفیع دیوانه به اوس هم کابلیان په دیوالو میخ کول.

ـ قمبرلنګ به اوس هم له کابلیو ښځو تیونه غوځول.

ـ اسد مارخور به اوس هم د شاه شهید په کوڅو کې د جنسي داړه ماری لپاره ګرځیده.

ـ کومندان صالح به اوس هم د پاشمول په پاټک هراتي هلکان کوزول.

ـ تجارتي باربري موټر به اوس هم د عام سرک په ځای د دکندهار د ریګ په دښتو تر ویشه رسیدل.

ـ ګیلم جمو به اوس هم د شمال په خلکو سپېرې خرڅولې

ـ که ملامحمدعمر مجاهد نه وای تر اوسه به د کابل او نورو ښارونو ولاړ دیوالونه څه بلکې شاوخوا غرونه هم د جګړو له زوره نړیدلي وای.

ـ تراوسه به د جنګلک او سروبي بند د ملي زیربناوو په شان د کابل او نورو سیمو ټول ملي تاسیسات پرزه په پرزه او خښته په خښته ټوټه شوي، لیلام شوي او د لاهور او کارخانو په کباړیانو پلورل شوي وای.

ـ اوس به د کوڅه په کوڅه او کلي په کلي جګړې له زوره دلته انسانان نه وای پاتې، بلکې د جګړه مارو، پوډریانو او ټوپکیانو یو ځنګلي نسل به د افغانستان د مالکیت دعوه دار وای.

ـ اوس به افغانستان نه وای، بلکې د هزارستان، سیافستان، دوستمستان، زردادستان او مسعودستان په نوم به ګڼ مختلف پاټکستانونه اباد وی.

ـ که د ملا محمد عمر پاڅون نه وای اوس به موږ او تاسو د فیسبوک لیکلو په ځای په پوستو کې د چرسو په پخولو ورځ اړولی.

ـ که د ملاصاحب پاڅون نه وای اوس به موږ د څوارلس کلن جهاد، هجرت، جهادي ثمره، اسلامي نظام او داسې نورو خبرو په ځای په دې غم کې وای چې څرنګه د خپلو شهیدانو قبرونه راوسپړو تر څو د پاکستان د هډوکو له سوداګرو وړباندې د چرسو لپاره پیسې پیدا کړو.

او که د ملامحمد عمر مجاهد پاڅون نه وای ... نور به څه شوي وای؟ هیله تاسو خپل نظرونه راسره شریک کړئ .



# د یووېشتمې پېړۍ اتل

ليکوال: طارق بدر

تخنيکر سټوډيو ته د ننوتلو اشاره راته وکړه، په مخامخ لويه هنداره کې مې لونګۍ سمه کړه، بږيره مې بيا ږمنځ کړه، دغاړې کالر مې سم کړ، څادر مې په اوږه کړ، واسکټ مې ژر بدل کړ، خو واسکټ خوند نه کاوه، تور له سپينو جامو سره ښه ښکارېده، سټوډيو ته ننوتم، مېز ته نېغ ودرېدم، لاس کې مې تشې ورقې په مخته ايښې مېز کېښودې، په مخامخ لوی سکرين کې مې ستر ګې وګنډلې، له موضوع خبر وم، ځکه خو مې نن خپلې خپرونې ته رابېره وه، نږدې دوه مياشتې مې يې خبر تياوې خپرولې، فيسبوک، ټويټر، راډيو او تلويزون کې يې لا له وړاندې اعلانونه خپاره شوي و، خلکو به پر لېسې زنګونه راته وهل: بدر صاحب! «د یووېشتمې پېړۍ اتل» خپرونې ته په تمه يو، اعلانونه يې خوند کوي.

ما به يواځې مننې او کور وداني ور ته ويل، «د یووېشتمې پېړۍ اتل» خپرونه له ملي تلويزونه زما په کور به توب نوې شروع کېدله او په اعلانونو کې مې يې ټينګار کړی و، چې دې خپرونه کې به د «عصر عمر» له خپلو خلکو سره په ژوندۍ بڼه خبرې کوي، د بريا زارونه به وايي، د سختيو کيسې به کوي او د یووېشتمې پېړۍ اتل د لقب په اړه به يې احساسات پوښتو...

تخنيکر اشاره راته وکړه، چې ځان اماده کړم، دوه دقيقې وروسته خپرونه شروع کېږي، ده په ماوس کليک وکړ، او په مخامخ تلويزون کې چې له لوی سکرين سره ځنګه ته ايښی و، سپين بيرغ ورو – ورو په رپېدو شو، نرمه ترانه ورسره ورو – ورو لوړېده:

سر پور ته کوه د خپلواکۍ بيرغ ورپه

ځار مو کړې له تا تنکۍ ځوانۍ بيرغ ورپه ځار مو کړې له تا تنکۍ ځوانۍ بيرغ ورپه!

وروسته په سکرين زما د خپرونې ځانګړی زيګنال پيل شو، عمري سرښندونکي له بمونو ډک موټرونه د کفارو په پنډ غالو ور ننباسې لوخړې پور ته شې د تکبير کړېږه وشي ور سره جوخت، د لمبو او لوخړو په منځ کې د امير المومنين تيت انځور ښکاره شي چې په څادر کې نغښتی د طالبانو په بدر ګه د کابل ښار کې روان وي، ترانه لوړه شې:

يې د عصر خليل، يې د عصر عمر موږه لر يو که بر، يو ستا يوځ ستا لښکر

د ترانې په منځ کې زما غږ، د امير المومنين له تيت انځور سره را لوړ شي:

«د یووېشتمې پېړۍ اتل!

په دې خپرونه کې د یووېشتم قرن، بې نمونې مشران درپېژنو، د باروتي ځوانانو وروستي غږونه اورو د دوی د کورنيو احساسات ګورو، او خپل موجود نسل ته د ناټو شرموونکې ماتې مخې ته ږدو!

د یووېشتمې پېړۍ اتل«!

د ترانې له ټيټېدو سره د کمرو ګروپونه ولګېدل، د لونګۍ شمله مې له شانه رامخکې کړه، په مخامخ لوی سکرين مې ليکلی متن پيل کړ:

»د ملي تلويزون درنو ليدونکو السلام عليکم ورحمه الله وبر کاته!

نحمده و نصلی علی رسوله الکريم!

د یووېشتمې پېړۍ اتل، لومړۍ خپرونه مو د یووېشتم قرن اوسپنيز انسان، د زړونو فاتح او د دې عصر عمر ته ځانګړې ده!

ګرانو لېدونکو، په دې خپرونه کې په ژوندۍ بڼه د عاليقد امير المومنين تر کوره ځو، له دوی سره خبرې کوو، د ناټو پر وړاندې د مبارزې ستړې ترې پوښتو، د زغم، ترحم او مشرۍ د بريا رازونه ترې پوښتو، د دې ستر انسان پر اطاعت وياړو، ستاسې انتظار پای ته رسوو او دوه دقيقې وروسته به موږ د عاليقدر امير المومنين له کوره په ژوندۍ بڼه ستاسې په چوپړ کې يو!

د سکايپ غږ مې راوېښ کړم، موډيم مې کمپيوټر کې بند و، سکايپ کې انلاين پاتې وم، د ملګري زنګ مې و، د درونډ انسان، د بې جوړې مجاهد، د ستر رهبر عاليقدر امير المومنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات، سوی پيغام يې راسره شريک کړه، زما خوب نيمګړی پاتې شو!

رب العلمين دې د عاليقدر امير المومنين د یووېشتمې پېړۍ باروتي سرښندونکي همداسې سره متحد لري، او د ستر رهبر ټولې قربانۍ دې قبوله شي!

## د مرحوم امیرالمومنین ملامحمدعمرمجاهدرحمه الله په یاد کې

زمونږ امیره زمونږ گرانه مشره
فخر تاریخه قدردانه مشره
ډېرو زړگیو ته درد ورسېده
ستا له رحلت ستا له هجرانه

رب دې په خپله مینه ونازه وه
الله دې واړه جنتونه درکړي
رب دې پوره کړه ارزو گانې دژوند
رب دې بې شماره انعامونه درکړي

منم چې هجر دې له درده ډک دی
څلور طرفته پریشاني خواره ده
سترگې لمدې دې مسکا کډه کړې
یوه معصومه خاموشي خواره ده

ددې مظلوم ملت دهیلو غوټۍ
دغوړیدلو په ارمان پاتې شوې
گرانه دستا په شان دبل پسرلي
مړاوې په غېږ کې دخزان پاتې شوې

خودا یوه کېسه په فخر کوو
چې لوی خالق لرو ناهیلي نه یو
دهجرانونو او مرگونو سره
شکر بلد یو نازولي نه یو

داسې متل مونږ له پخوا نه اورو
چې دزمرو کور بې زمرو نه نه وي
خړ پړ خالات قیاسوو مونږ په دې
چې لال اکثره بې ایرو نه نه وي

رهبره ستا دژوند او مرگ فلسفه
تشریح کول زما دوس کار نه دی
دې ته پکار دی بل نسیم حجازي
زما په شان دهر یو کس کار نه دی

خو فقط دومره باید ووایمه
چې په رښتیا ثالث عمر وې گرانه
ته دحریت او خپلواکۍ امام وې
ته دایمان او غیرت غر وې گرانه

ته په یوه معنا دوخت بلال وې
ستا په اذان مسلم امت بیدار شو
ستا په برکت په مسلمان ملت کې
ویده احساس داخوت بیدار شو

